# دیوان عبدالرحمن



تمهید

مولانا عبدالقادر

پیش لفظ

پروفیسر محمد نواز طائر

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

د پښتو اکیډمي د مطبوعاتو سلسله نمبر ۴۱۴

نګران — د ډائرکټر پښتو اکیډمي

اول ځل چاپ نېټه — ۱۹۶۳ء

دویم ځل چاپ نېټه — ۱۹۸۷ء

د چاپ ځائے — جدون پریس

تعداد — یو زر

30/00

په اهتمام د لطف الله خوشنویس په جدون پریس پېښور
کښې چاپ شو - او د پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټۍ نه خور شو۔

# تشکر

موږ د صوبائي حکومت د وزارت تعلیم او بالخصوص

د صوبه سرحد د ګران وزیراعلی ارباب محمد جهانګیر خان

مننه کوو چه د دغوئ په خاص پیرزوونه او مالي اعانت

پښتو اکیډیمي د دے جوګه شوه چه دا کتاب بیا

خپلو قارئینو ته وړاندے کړي

---

بسم الله الرحمٰن الرحیم

نحمدهٗ ونصلی علیٰ رسوله الکریم

پښتو اکېډمي د پاکستان د مرکزي وزارتِ تعليم په مالي امداد دوه کتابونه ډېره موده پخوا په اُردو کښې ترجمه کړي او د دې اُردو ترجمه سره شائع کړي وُو۔ په دغه دوو کتابونو کښې يو منتخباتِ خوشحال خان خټک وو چه ترجمې د پښتو اکېډمي يو پخواني غړي حکيم سيد انوار الحق کړې وه۔ دغه ترجمه په نثر کښې وه۔ دويم کتاب د رحمان بابا ديوان وو۔ د دې ترجمه منظومه وه او مترجم ئې د بابا ئې غزل، بو المراد امير حمزه شينواري صاحب وو۔ د رحمان بابا د ديوان په دغه ترجمه کښې د معنے او مفهوم په لحاظ د ترجمې څومره حق ادا شوے وو دا د قارئينو په رائې منحصره ده۔ البته دغه کتاب د شائع کېدو نه پس ډېر زر ختم شو۔ سره د دې چه دې کتاب طلب ډېر زيات وو او د اکېډمۍ نه په بار بار تقاضے کېدے ولې نۀ خو د اُردو ترجمې سره د رحمان بابا د ديوان دغه مطبوعه نسخه دستياب وه او نۀ د ديوان اصل متن۔ ډېره موده په دې منځ کښې واوړېده۔ د رحمان بابا د ديوان څُخنے نور، ايډيشنونه مختلفو اِدارو شائع کړل او د دوستونکو فوري ضرورت ئې ترسره کړو۔ ولې کوم حاجت او ضرورت چه د پښتو اکېډمي د مطبوعه کتاب وو هغه بيا هم نيمګړے وو۔ د دې د کبله اکېډمي آخر دا فيصله اوکړه چه د دې کتاب د دوباره اشاعت څۀ لاره کوَدر جوړول پکار دي۔ د دې مقصد دپاره اکېډمي د صوبه سرحد صوبائي حکومت ته خواست اوکړو او د صوبائي حکومت له خوا په دے لړ کښې مثبت اقدام پښتو اکېډمي د دے خېرے جوګه کړه چه دغه کتاب يو ځل بيا شائع کړي۔

د رحمان بابا د کلام مقبولیت او هر دلعزیزي دومره خبره متقاضي ده چه دا دیوان
په مختلفو سائزونو او بیله بیله تقطیع او بیل بیل معیار کښې هر کله دستیاب وي. د
ښه ښکلي او معیاري طباعت د اوچت قیمت نسخې هم په لاس راځي او د طالب علمانو
او عامو لوستونکو د وس په بیعه دې هم په لاس راځي. دا سې لکه دیوان حافظ او دیوان
غالب چه خوشنما او مصور ایډیشن ئې هم مونده شي او عام ایډیشنونه هم او
یا بیا ګرده کتاب سره معیاري ترجمې او شرح هم موجود دي. په دې حال د پښتو اکیډیمي
د رحمان بابا دیوان تر یو حده د دغه ضرورت او حاجت تر سره کوي. دا نه خو
دومره ګران او قیمتي دې چه عام خلق ئې اخستې نه شي او نه دومره ارزان او کم قیمته
دې چه اخستونکې ئې بیخي نه خوښوي. ترجمه ئې په خپل ځای مستند ده ځکه چه
مترجم ئې د موجوده دور د پښتو ژبې رئیس المتغزلین دې څوک چه په اردو ژبه هم
ښه عبور لري.

د رحمان بابا دا دیوان د پښتو اکیډیمي د نورو کتابونو سره د صوبائي حکومت
په مالي مرسته شائع کولے شي. زه د پښتو اکیډیمي له خوا د ګران وزیر اعلی ارباب
محمد جهانګیر خان او د صوبه سرحد وزارت تعلیم د سابق سکتر ښاغلي پروفیسر رشید احمد
باچا د ښېنې او پیرزوونې ډیره مننه کوم چه د هغوئ اخلاص پښتو اکیډیمي د دې جوګه
کړه چه د دغه کتابونه یو ځل بیا شائع کړي.

زه د پښتو اکیډیمي د خپلو ټولو ملګرو بالخصوص د مولوي محمد اسحاق،
لطف الله خوشنویس، محمد رسول کاتب، ارشاد کاتب، قاضي حنیف الله پروف ریډر،
سرفراز خان لائبریرین، حاجي سید محمد شفیع، محمد انور خان، فدا محمد او
د دفتر د نورو عملې او د جدون پریس د اهل کارو او انتظامیې هم ډیر ممنون یم

چه هغوئ هم زمونږ سره په دے کار کښے بنهٔ په خلاص مټ کومک اوکړو او مونږ د دے جوګه کړو چه د ګڼلا کتابونهٔ طالب علمانو او عامولوستونکو د ضرورت ترسره دپاره زر تر زره شائع کړو۔

و ما علينا الا البلاغ

پروفیسر محمد نواز طائر
ډائرکټر
پښتو اکیډیمی پېښور یونیورسټی

۱۶ ستمبر ۱۹۸۷ء

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

نحمدہٗ و نصلّی علٰی رسولہِ الکریمؑ

د یوے ژبے نه بلے ژبه کښې څه ترجمه کول ډیر ګران کار دے۔ او چه ترجمه بیا د شعر نه په شعر کښې شی نو دا لا ډیره ګرانه شی۔ زۀ به دے میدان کښې لنده شان تجربه ضرور لرم۔ او د دغے تجربے په بنا ما د ترجمے د زړو او نوی اصولو د سنجولو بیا بیا کوشش کړے دے۔ ترجمه به اول اول کښې اسان کار ښکاری۔ خو چه ترجمه کونکے ورته یو ځل ټیے را کښې، او کاغذ قلم راواخلی او ګوتے پورے کړی نو ډیر زر ورته دے اسان کار کښې ډیرے ګرانے پیښے شی۔ ترجمه کونکے به هله یو کتاب یا یو مضمون ته لاس اچوی چه دے د هغے په ژبه پوره قابو لری۔ او په خپله ژبه نے هم داسے قابو وی چه د کتاب یا مضمون هیڅ لفظ بے صحیح ترجمے پاتے نشی۔ د هیڅ لفظ معنے او د استعمال باریک بیلتون د دۀ د نظره پټ پاتے نشی او د ترجمے په ژبه کښې دغه باریکی او خوند د ترجمے د خپلے محاورے مطابق هم ادا شوے وی۔ په دے عمل کښې د ترجمے د سنجولو ټول اصول منلے شوے راغلے دے۔ او هغه دا دے چه ترجمه د ترجمه به ښکاریږی۔ د ترجمے د ژبے، د محاورے او اصطلاح د جخت خیال ساتلے شوے وی۔ اصل مطلب کښې ډیر کم لاندے باندے راغلے وی۔ د ترجمے دا انداز او معیار ډیر لوړ دے۔ او که په نثر کښې وائے نو تر ډیره حده ترجمه صحیح او پُر معنیٰ کیدے شی۔ ولے په شعر کښې ترجمه

داسې ځيګر سوزی ده چه د ترجمې دا معيار چه اوس ذکر شو، د ترجمې دغه معيار ته رسيدل به بيڼو معجزه وی۔ ولې بيا هم عالمان او اديبان او محققينو تل دا کوشش کړے دے چه د يوې ژبې اشعارو ته د يوې بلې ژبې د شعر جامه ورواغونده وی، دا سلسله خدائے خبر چه د کله نه شروع شوې ده، ولې دا يقين دے چه تر قيامته به روانه وی۔ د دنيا د کلاسيکی ترجمو ذکر کول به مناسب وو ولې خبره اوږديږی نو زهٔ ئے هم په دغه ځائے پريږدم —

د ترجمې ميدان لکه د علم او د سائنس د ميدان هيڅ پوله نهٔ لری۔ د دنيا کومه ژبه به داسې وی چه نيکل لوستل به پکښې کيږی۔ او څه تصنيف تاليف يا شعر شاعری نری۔ اوِ د دنيا يوې بلې ژبې ته به د هغې د اړولو کوشش نهٔ وی شوے۔ ان چه د دنيا د ډيرو وړو او کمو يادو ژبو تحقيق راواخلې نو که د نورو نه نهٔ وی نو د شعر و شاعرئ ترجمه خو به ئے چا محقق په څه نه څه شکل کښې ضرور کړے وی۔ په دے کښې زما مدعا د زياتې ترجمې يا کمې ترجمې نهٔ ده۔ مقصد دا دے چه د آسمانی کتابونو نه واخلئ نو د فلسفې، ادب، تاريخ، سائنس او ان چه د فنی او صنعتی ليک پورې ترجمې شوې دی۔ او کيږی به۔

زهٔ دا نهٔ شم وئيلے چه د رحمان بابا کلام په اردو شعر کښې ترجمه کول ولې او تر کومه حده ضروری وو۔ ولې چه د هندوستان مسلمان له الله تعالیٰ يو خپل آزاد ملک ورکړو۔ او د دے ملک د هر کوټ اوسيدونکو کښې دا تلوسه اوغړيده چه يو تر بله دے نور هم زيات نزدے شی، او داسې لکه څنګه چه د دے علاقې ټول اوسيدونکی يو بل ته د مذهب او عقيدے له لوريه ډير نزدے وی۔ دغه رنګې د دوئ ثقافت، تهذيب او تمدن له لوريه هم يو تر بله پيژندګلو راولی۔ د پاکستان حکومت دے ته پوره پوره توجه اوکړه۔ او چه په دے څو کاله کښې ئے څومره وس رسيدهٔ

د دے لوړ مقصد د پاره ئے ډیر کوششونه اوکړل ـ

د ثقافت، کلچر او تهذیب او تمدن په میدان کښے د نزدے والی راوستو د تولو نه زبردسته وسله ژبه ده ـ حکومت په دغه سلسله کښے د لوړې ژبے فیصله ډیر په انصاف سره اوکړه او اردو او بنګالی دواړه ئے د پاکستان سرکاری ژبے اومنلے او دے سره ئے بیا د علاقائی او د ملی ژبو مرمینځه د نزدے والی راوستو د پاره د علاقائی ژبو نه په ملی ژبو کښے او د دے دواړو ملی ژبو نه په علاقائی ژبو کښے د هرکوټ ادب او فن او ثقافت یو تر بله رانزدے کولو ته غټه کړے ـ ملت پاکستان ته د دے څومره غټه ښیګړه اورسیده، د دے ذکر کول زما د وسه بهر دی ـ دا خو که په ملک کښے یو مکمله جائزه واخستے شی، نو هله به پته اولګیدے شی چه د پاکستان ګنړے علاقائیزے ژبے، ملی ژبو ، ثقافت وغیره وغیره ته څومره نزدے شوے ـ زهٔ که څه لږ ډیر وئیلے شمه نو سر د پښتو ژبے په حقله وئیلے شم، ځکه چه د دے سلسلے دا اهمه لړے د پښتو اکیډیمئ سره تعلق لری، او د هغے ذکر په ما باندے لازم راځی ـ

د پېښور یونیورسټئ د پښتو اکیډیمی بنا په کال ۱۹۵۵ ع کښے ایښودے شوے ده ـ اکیډیمئ د تولو نه اول د پښتو د مشهور شاعر خوشحال خان خټک د منتخب کلام اردو ترجمه په نثر کښے په کال ۱۹۵۸ ع کښے چاپ او خوره کړهٔ ـ دغه ترجمه سید انوارلحق صاحب کړے وه ، د خوشحال خان د منتخباتو د اردو دا ترجمه خواؤ شا اووهٔ سوه مخه ده ـ یو طرف ته پښتو او بل طرف ته اردو ده ، د دغے لوئے کار خرچ نیم پښتو اکیډیمئ او نیم د پاکستان مرکزی حکومت اومنهٔ ، د پاکستان مرکزی حکومت دا فیصله اوکړه چه که پښتو اکیډیمی د پښتو د مستندو عامی او کلاسیکی کتابونو ترجمه په اردو کښے اوکړی، نو په دغه اصول

په حکومت د خرچ بار د اکیډیمی سره نیم په نیم اُوویشی۔

په کال ۱۹۵۸ع کښې دا فیصله اوشوه چه د پښتو مشهور صوفی شاعر عبدالرحمان بابا (رح) دیوان دِ په اردو کښې ترجمه کړے شی د یونیورسټیٔ مشرانو یو وړه شان جرګه جوړه کړه چه دوه خبرے فیصله کړی یوهٔ دا چه د رحمان د دیوان ترجمه په شعر کښې پکار ده او که په نثر کښې؟ د دے جرګے په غاړه دوئمه فیصله دا هم کول وو چه څوک د دے کار د پاره خوبن کړے شی؟ د دے جرګے رابلل زما په غاړه وو۔ او غړی ئے ښاغلے پروفیسر صاحبزاده محمد ادریس، ښاغلے مولانا عبدالقدوس، ښاغلے پروفیسر محمد طاهر فاروقی، ښاغلے سید انوارالحق، ښاغلے خیال بخاری، ښاغلے قاضی هدایت‌الله او ښاغلے مولوی محمد اسرائیل وو۔ جرګے په یوه خولهٔ دا فیصله اوکړه چه رحمان صوفی شاعر دے او په نثر کښې که د دهٔ کلام ترجمه شی نو خوند به ئے بیخی ورک شی ځکه نو د دهٔ د کلام ترجمه په اردو شعر کښې پکار ده۔ پاتے شوه دا چه د شعر د ترجمے دا کار دِ څوک اوکړی، مونږ یو څو داسے شاعرانو او ادیبانو ته خواست اوکړو چه د رحمان د دریو غزلو ترجمه دے په اردو شعر کښې مونږ ته راواستوی۔ دے جرګے د یو څو شاعرانو رالیږلے نمونے ښے اوسنجولے او په دے یوه خولهٔ شو، چه په دغه را رسیدلو ترجمو کښې د ښاغلی امیر حمزه شنواری اردو ترجمه غوره ده۔ د دے فیصلے نه پس بیا ما د حمزه شنواری سره خبرے اترے اوکړے او هغه د ترجمے دے کار ته وړلاندے وتو۔

حمزه شنوارے د پښتو مشهور شاعر او ادیب دے او د غزل په میدان کښې د سر سرے کنټرلے شی۔ حمزه د یو بل غټ کمال خاوند هم دے۔ دے صوفی منش دے۔ ژوندے زړهٔ لری او د رحمان سره یو روحانی رابطے په وجه دهٔ د دے کار د سر ته رسولو پوره اهلیت لرهٔ۔

حمزه په اردو کښې هم شعر ليکي، اردو فارسۍ سره ډيره مينه لري، او پا اردو ښۀ بر دے۔ فارسي مے ترے پخپله نۀ ده اوريدلے خو وائي چه څو غزلے ئې فارسي کښې وئيلي دي۔

پاتے شوه اوس دا چه د حمزه دا ترجمه به تر کومه حده په د غه معيار درسته اوخيژي د کوم ذکر چه ما د دے تمهيد په اولنۍ څو کرښو کښې کړے دے، حمزه که هر څومره لوړ شاعر اديب او نظر لرونکے صوفي دے۔ ولے مورنۍ ژبه ئې پښتو ده۔ اردو ئې زده کړے ده، نو که د دۀ د اردو ترجمے خوند هغسے نۀ وي څنګه چه د اصل دے۔ يا د څينے ناقدانو په خيال ترجمه دا رنګے نه بل رنګے پکار وه وغيره وغيره، نو دوي حق لري او مونږه عذر ۔ زما په خپله عقيده په دے قسم علمي کارونو کښې داسے درجۀ کمال ته رسيدل چه د هيڅ قسم کوتے اينبودو ځائے پکښې پاتے نه شي د بنيادم د وس خبره نۀ ده ۔ حمزه او د دۀ دا د اردو ترجمے سنجونکي، يعنے مولانا عبدالقدوس او مشتاق احمد مشتاق، په خپل وس پرې وو ۔ په دے کښې بس هم دغه هومره وينا کافي ده ۔ الله تعالی دِ زمونږ په دے کوشش کښې داسے برکت واچوي چه اردو او پښتو لوستونکي رونړه عزيزان دا ترجمه واخلي او وے لولي او بيا چه پکښې څه د ترميم تنسيخ اضافے يا کمی ګنجائش ښکاري نو وے کړي ۔ که پخپله ئې اوکړے شوۀ او که مونږ د دے جوګه ګنړي ۔ مونږ ته دے ئې راواستوی چه که چرے دوئم ځل د دے ترجمے د چاپ کيدو سمون جوړ شي نو چه هغه هر څه پکښې ځائے کړے شي ۔

د رحمان د کلام د اردو د ترجمے او د هغے د پس منظر او پوره والي يا نيمګړتيا د دے بحث نه پس که زۀ د هغه ګرانو ذکر اوکړم کومے چه د داسے دوه ژبينو کتابونو د ترجمو او چاپ لار کښې پيښيږي نو لوستونکي به پرے ستومانه شي او زمونږ به پرے هيڅ ښيګړه او نۀ شي ۔ زۀ

د اکیډیمئ د هر چاپ کیدونکی کتاب په وړاندې څه نه څه لیکم او کله کله راله ځان پورې خندا هم راشي ـ ځکه چه د راتلونکی زمانې تیز فهمه او تیز ژبې ناقد خو ډیر په آسانه دا وئیلې شي چه دې سړی نور خو څه نۀ شو لیکلې ـ تمهیدونو له ئې زور ورکړې وو ـ هسې یو تمهیدی شان پښتو لیکونکې وو ـ بې د تمهید نه به ئې یا څه لیکلي وی یا نه، ولې د هر تمهید په روستو کړښو کښې د پښتنو رونړو د بې فکرئ او بې رخئ ژړا ژاړی "کتابونه نۀ خرڅیږی" ـ "پښتون په کتاب پیسې نۀ ورکوی" او "قوم اوده دې" ـ او فلانې او ډینګلې دې، بس دغه به ئې وې ـ ولې زۀ به بیا هم دغه ژړا کومه ـ که د کتاب په تمهید کښې وی او یا په څه اخبار یا رساله او یا کتاب کښې وی ـ آخر چه یو کتاب په دومره خوارئ چاپ شی دومره خرڅ پرې راشي نو یو منصف ناقد د باید پخپله اووائی چه دغه کتاب خوریدل او خرڅیدل څومره ضروری دی او که نۀ ، د اکیډیمئ په لنډو تنګو کوټو کښې د د دوړو، وینو او کونړو خوراک شی ـ "کار نۀ کیږی" "کتابونه نشي لیکلې" "علمی تحقیق نشته" "اکیډیمئ لا تر اوسه څه کړی دی؟" ډیر بناغلی داسې وائی، زۀ څه چل اوکړم چه داسې ویونکی رونړه د دې وئیلو نه مخکښې دومره تکلیف هم نۀ کوی، چه چرته د چا نه تپوس اوکړی چه یره چه په علمی میدان کښې زمونږ په خوا ؤ شا کښې څه کار هم کیږی یا شوې دې که نه؟ لنډه دا چه کتاب نۀ لوستونکی د دغه وائی او مونږ به چه تر څومره را نه کیږی کوشش به کوو چه علم خور کړو ـ او د قام د بچو تربیت چه څومره ممکن وی د اسلام په رنړا کښې اوکړو ـ

د دې ترجمې د نظرثانی په لار کښې مولوی عبدالقدوس صاحب ډیر ځان کړولې دې ـ چاپ ته د لیږلو نه مخکښې د اکیډیمئ ځنې غړو هم په دې یو نظر اچولې دې ـ په دې کښې بناغلې مشتاق احمد او سیف الرحمان د خاص ستائنې جوګه دی ـ زۀ د مولانا عبدالقدوس ډیر شکرګزار یم چه هغۀ په حیثیت د اردو او پښتو د یو جید عالم د حمزه د اردو ترجمې په سر سره کولو

کښې ځرله او ږده تجربه او پکاروله ـ عبدالرحمان شباب او سيف الرحمان دواړو د دے چاپ کتاب په تدوين، ترتيب، تصحيح وغيره وغيره کښې بے کچه ډيره ځيګر سوزي کړے ده ـ دوه ژبين کتاب ډيره ځيګر سوزي غواړي ـ او بيا چه چاپ ئے په پښتو ټائپ کښې وي ـ چه نۀ پرے چاپ خانه سمه راځي او نۀ د چاپ خانے د حرفونو لګوونکي کارکنان د دے قسم چاپ سمه تجربه لري ـ د دے کتاب په چاپ کښې د پېښور يونيورسټئي د چاپ خانے غونډه مونډه برخه ده ځکه چه د دے اردو حصه د دغے چاپ خانے د کارکوونکو د لاس ده ـ زۀ د پېښور يونيورسټئي د چاپ خانے د منظور الٰهي منظر، محمد شريف او ياقوت خان ډيره منته کوم ـ او د پښتو د حصے د چاپ کار پبلک آرټ پريس کښې شوے دے ـ په دے کښې د عبدالکريم خليل د پښتو د حرفونو د شکلونو په بهتر کولو کښې څومره ځان کړولے دے ـ زۀ د دۀ د دغے شوق، اخلاص او محنت ډيره ستائنه کوم ـ

يو آخري عرض لرم او هغه دا چه زمونږ دا اراده ده چه د رحمان بابا يوۀ مکمله او مستنده نسخه د اکېډيمۍ د طرفه چاپ کړو ـ دا موجوده ديوان په رومبي ځل ما د مولوي فضل ودود صاحب په ملګرتيا کښې په لاهور کښې په ۱۹۳۸ع کښې مرتب کړے وو او يو تمهيد شان ئے پرے هم ليکلے وو ـ (چه هغه دے سره شامل دے) او دعا مے کړے وه، چه الله تعالىٰ دے زلمو اديبانو او محققينو له همت ورکړي چه د رحمان (رح) د ژوند، کلام وغيره وغيره په حقله نور زيات مستند معلومات راغونډ کړي ـ زما دغه دعا تر ډيره حده الله تعالىٰ قبوله کړے ده ـ او چه څه وخت مونږ د اکېډيمۍ د طرفه د رحمان بابا (رح) يو مکمله مستنده نسخه چاپ کوو، نو زۀ به د دغه تحقيق په حقله چه کومو اديبانو او نقادانو څه کار کړے دے يوه ښه تفصيلي مقاله ليکمه ـ که ز دغه ژوندے پاتے شومه ـ اکېډيمي ته د الله تعالىٰ په فضل د انګلستان جرمني، ... کله او پخله په پاکستان کښې د رحمان بابا (رح) ځينے قلمي نسخے ... پيدا شوے دي ـ او که خدائے ته منظوره وي او دغه وخت

واغې نو يقين دے چه د دغه نوى تحقيق نه پس به د رحمان د ديوان پوره مکمله نسخه چاپ شى - په دے نوى نسخه (ايډيشن) کښې مونږ هم هغه د کال ۱۹۴۸ء ترتيب قائم ساتلے دے - هن١ په الفاظو کښې مو ځاے په ځاے څه لاندے باندے راوستے دے - خير دغه خو به کيږى چه څه کيږى خو د الله تعالىٰ شکر دے چه مونږه نے د دے جوګه کړو، چه د پښتو ژبے د تولو نه د مشهور صوفى شاعر کلام د وطن نورو رونړو خوږندو ته په اردو ژبه کښې پيش کړو - زۀ دا د علم، ادب، ملک او ملت، تهذيب، ثقافت او مذهب يو غوريز خدمت گنړم که الله پاک ته منظوره شى نو زۀ به د ډير اونے قسمت خاوند يم — والسلام

| | |
|---|---|
| پېښور يونيوسټى | مولانا عبدالقادر |
| ۳۰ جون کال ۱۹۶۳ عيسوى | ډائرکټر - پښتو اکيډيمى |

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده و نصلّی علی رسوله الکریم

# عبدالرحمان سره بنے

د شاعرئ په تاريخ کښې داسے مثالونه موندے شي چه د شاع
کلام خو په اولس کښې عام رواج او شهرت لرئ. ولے پخپله د شاعر
ژوند د عامو حالاتو قدرے نه هم څوک سم نهٔ وي خبر. د فارسي ږ
شعراء کښې د خواجه حافظ شيرازي (رح) هومره اوچت مقام د ډيرو کم
برابر شاعرانو نصيب شوے دے. ولے د دهٔ د سوانح حيات د ليک ابتدا
علامه شبلي (رح) د شعر العجم په دويم جلد کښې په دے الفاظو سره کړے ده:-

"د شاعرئ په تاريخ کښې د دے نه زياته افسوسناکه واقعه نشي کيدے چه د خواجه حافظ د ژوند حالات دومره کم معلوم شوي دي چه د شوق او ذوق لرونکو وچے شونډے تيرے هم نهٔ دي لوندے شوي. که د خواجه حافظ د پائے شاعر چرته په يورپ کښې پيدا وے نو دومره سوانح عمرئ به نے ليکلے شوے وے چه د هغهٔ د تصوير هر خد و خال به ښکاره شوے وو. ولے تذکره نويسانو چه تر اوسه څه ليکلي دي که هغه ټول راغونډ کړے شي نو د خواجه حافظ (رح) د ژوند يو اړخ قدرے هم ترے سم نهٔ څرګنديږي. هر څومره تذکرے چه ليکلے شويدي. هر د بل نه اخذ شويدي. او هم هغه واقعات دي چه په بيلو الفاظو کښې ذکر شوي دي."

د انګریزي ادب په تاریخ کښې د شکسپیر دومره لوړ مقام دے چه که د هغهٔ کلام ترے لرے کړے نو د انګریزۍ ژبے لمنه به تشه توره پاتے شي۔ د شکسپیر د ډرامو په تشریح او توضیح کښې زرګونه کتابونه لیکلی شوی دی۔ ولے پخپله د مصنف د ژوند د اصلی حالاتو په حقله مستند معلومات ډیر لږ دی۔ ځنې مؤرخین او ناقدان دا رائے لری چه شکسپیر هډو څوک داسے ممتاز شاعر تیر شوے نهٔ دے۔ دا خو لارډ بیکن وو چه خپل کلام ئے د یو فرضي نوم لاندے لیکلے وو۔ د دنیا د هرے مترقی ژبے او متمدن ملک په ادبی تاریخ کښې داسے مثالونه پیښیږی۔ دا دوه مثالونه کافی دی۔ مدعا مے د دے نه دا ده چه د پښتو شاعرئ په تاریخ کښې د رحمان بابا نه زیات شهرت او هردلعزیزی لا تر ننه د هیڅ شاعر نهٔ ده نصیب شوے۔ د پښتنو د علاقے نر، ښځے، لوئے، واړهٔ، عالم، جاهل، لنډه دا چه هر کس و ناکس د رحمان بابا نوم پیژنی۔ د هغهٔ که یوه نیمه رباعی نهٔ وی نو یو نیم بیت خو ورته ضرور یاد وی۔ هر مجلس هم د دهٔ د کلام په رڼړا روښانه وی د پښتون د ژوند هر کیفیت په څه نه څه پیرایه کښې د دهٔ په کلام کښې موجود وی۔ ډیرے مصرعے ئے عام متلونه دی۔ ولے سره د دے دومره عالمګیر مقبولیت د رحمان بابا خپل حالات پیسا ورو ادیبانو او نامتو شاعرانو ته هم نهٔ دی معلوم۔ زهٔ د ادب د یو صنف مهارت هم نهٔ لرم۔ او هم هغه کومه کوم چه زما نه مخکښې فاضلانو ادیبانو او لویو تاریخ دانانو او ناقدانو کړی دی۔ جوازئے دا دے چه د طالب علم کار زده کړه تالاش او کنجکاوے دے تحقیق د علم د خوړولو یو ضروری شرط دے۔ ما د نورو د تجسس نه استفاده او کړه ګورے که دا د چا بل په ښه راشي۔

د رحمان بابا د ژوند د حالاتو په خواؤ شا کښې چه تر ننه هر څومره تحقیق او څیړنه شویده د هغے نه دا معلومیږی چه :۔

(۱) دے په اصل غوري خیل مهمند دے۔ او په بهادر کلي کښې پیداشوے وو۔ دا کلے د پېښور ښهر نه سوبل پلو ښخه میله ... وهات په سړک پروت دے۔ مشهور مستشرق هیوز لیکي۔ چه رحمان بابا د مهمندو د ابراهیم خیلو له ښېنے څخه دے۔ یو بل نامتو مستشرق میجر راورټي وائي چه دهٔ د مهمندو د ټبې په هزارخانئے نومے کلي کښې استوګنه کوله۔ د دے دوارو مستشرقینو دا تحقیق په خپل ځائے قابل قدر دے۔ خو د پښتون د ژوند نه واقف خلق خبر دي چه د پښتنو د یوے قبیلے څنے ښنے وي۔ او اکثر داسے کیږي چه یو کس کله په یوه پښه یاد شي کله په بله۔ که رحمان بابا د غوریا خیلو په تابین ور ...یری یا د ابراهیم خیلو۔ دے د مهمندو (سړښنے) دے۔ او دغه کافي دہ۔

دا هم معلومه خبره ده چه پیدا ... بهادر کلي کښې وو۔ او استوګنه ئے په هزار خانئے کوله۔ چونکه رحمان بابا ښخ د هزارخانئے په قبرستان کښې دے۔ نو د پښتنو د عام عادت مطابق مړے د خپل کلي په قبرستان کښې ښخیږي۔ څکه راورټي هزار خانئے د دهٔ د استوګنے ځائے ګڼرلے دے۔ او لیکي چه د هغهٔ قبر د خپل کلي په قبرستان کښې جوړ دے، هر څه چه وي د راورټي دا نتیجه په دے اعتبار سره درسته ده۔ چه د دهٔ د استوګنے ځائے هزار خانئے وو۔ ولې دے سره دا اضافه ضروري ده چه د دهٔ د پیدائش ځائے بهادر کلے هم ښودے شي۔

(۲) ... مان بابا د پلار یا د اولاد په حقله هم معلومات ډیر کم دي۔ د کتاب "پښتو تولنے"، چه د محمد هوتک بابا "پټه خزانه"، نومے کتاب ... مرتب او شائع کړیدے په هغے کښې درج دي۔ چه "عبدالرحمان بابا په قوم مهمند وو۔ او په پیښور ئے ژوندون کړ۔ پلار ئے په عبدالستار نومیدهٔ۔ په بهادر کلي کښې ډیره وو۔ په سنه (۱۰۴۲) هجري

پیدا شو۔ او له ملا محمد یوسف یوسفزی څخه ئے لوست وکړ۔ او له هغهٔ څخه ئے فقه او تصوف زده کړل۔ او بیا لاړ کوهاټ ته، هلته ئے هم سبقونه اولوستل او ښهٔ عالم شو۔ په ځوانئے ئے دنیا پرېښوله۔ او د دنیا په کارونو نهٔ مشغول کیدهٔ۔ عبدالرحمان بابا یو عالم ربانی او عابد سړے وو۔ او ډیر شعرونه ئے د خدائے تعالی جل جلاله په محبت کښے اووئیل۔ او په پښتنو کښے په رحمان بابا مشهور شو۔ په سنه ۱۱۱۸ هجری وفات شو۔ خلق ئے لا تر اوسه د پېښور په هدیره کښے زیارتونه کا۔ او د دهٔ شعرونه لولی۔ د رحمان د شعر او غزلو دیوان شته او ډیر ډیر پیدا کیږی"۔ (پټه خزانه صفحه ۹۲)

میجر راورټی لیکی چه:۔

"د رحمان بابا د لور د لوریه نوسی نوسئے په یو وړوکے شان بانډه کښے نن هم موجود دی۔ دے بانډے ته بهادر کلے وائی۔ دا د مهمندو په علاقه کښے دے۔ ولے د دهٔ د یکی پوځوی اولاد بالکل ورک دے"

د دے شهادت نه سوا، ماته تر اوسه هیڅ مستند حالات په گوتو نهٔ دی راغلی۔ وائی چه په بهادر کلی کښے د رحمان بابا د وگړی ځینو کسانو څخه کافی معلومات شته۔ څه رنګه ښه به وے که هغوئ د دغه معلوماتو نه باقی دنیا هم خبر کړے وے۔ او مستشرقینو یا نورو غیر مسلم تاجرانو شایع کړو کتابونو رسالو په ځائے د دوئ صحیح حالات جمع کړے او شایع کړے وے۔ متاسفانه ما هم دا فرصت بیا نهٔ موندهٔ چه پخپله بهادر کلی ته حاضر شوے وے

زۀ په لاهور یمه ـ د آما او د کما خبره ده خو خیر په دوهم ځل که الله تعا
افضل او کړو ـ او دا دیوان بیا د دے نه په بهتر شکل کښے شائع کیږی نو د
کمے به نۀ که زما دلاسه وی یا د بل چا ښه صاحب نظر ناقد له برکته
ضرور پوره شی۔ صرف د رحمان بابا نوسی نه بلکه د پښتنو د علاقے په دے ویړه
کښے به نور هم ډیرعالمان او پوهه خوا خوږی وی چه هغوئ به ضرور څه معلو
اری ـ که چرے د دے تمهید په کتو د هغوئ زړونه لږ نرم شی ـ او د غه معلو
یا کتابونه حوالے وغیره وغیره هر څه چه وی ما ته را واستوی۔ یا چا د
ادبب یا انجمن ته نۀ حواله کړی چه د دغے نه استفاده کولے شی ـ نو ز
د ژبے او ادب یو غټ کمے به پوره شی۔

په سوچه پښتو کښے تر حاضر ساعت صرف د پروفیسر عبدالمجید از
مختصر تمهید د عجب خان یو نظم د پښتو توانے پښتانه شعراء او هم د
انجمن 'پټه خزانه، د رحمان بابا په حلقه څه بیان لیکی ـ دا سے معلومیږی
پروفیسر عبدالمجید افغانی د راورتی له معلوماتو څخه زیات اخذ کړ یدے۔ یوه
خبره نۀ د عجب خان د نظم نه هم اخستے ده پښتانه شعراء لوکوتی ا
مهدان اری ـ او د دے معلوما تو نه سوائے د مستشرقینو له معلوماتو څخے
استفا ده کړیده 'پټه خزا نۀ بذات خود یو مستند کتاب دے ـ شکر دے
دا دومره څۀ خوشته ـ که دا عم نه وے نوسړی به چاته کوته نیوه ـ او په چا
وله و ہنله ـ خو حقیقت دا دے چه په دے صبریدل او نوره کنجکا وی نۀ
یاد دلے کړه کوته نۀ کتل به د علمی او ادبی تحقیق منافی خبره وی ـ مثلاً
په دے کښے د عجب خان نظم لکه د بهرام شهزاده یا دا قسم نور و قیه
پوه اصه ده ـ او تر دغه حده د مزے قصه ده ولے رحمان بابا خو څه جلاتے
په د محبوبا په قلا کښے به نۀ محبوبا لټوله ـ او په دغه چاپیر چل کښے به نۀ
یو اوب لښے خرے خرے واره ولے ـ او کله به نۀ بل برید سره زغره خوړله دے
پښتو نخوا یو خورا لوړ شاعر، مفکر، رهنما وو صاحب بصیرت معلم وو ـ چه د خپ

نے په داسے شان سره نال کړیدے ـ او بیانئے په خپلو او ښکو د دغے باغ
خور کړیدے چه د غه بوټے به تل تاند او د غه گلونه شا عمر تازه وی ـ
جب خان د نظم سیاق سباق نه صفا معلومیږی چه رحمان څه خاص شخصیت
ـ لکه د یو افسانے شاه ځلمے (هیرو) دے ـ عجب خان د دهٔ د پلار نوم
ن اروا حاِن او د وروړ نوم عزیز خان ذکر کړیدے ـ او وائی چه د دهٔ پلار
مهمندو د ټپے یو باد خان وو ـ او لوئے دوران ئے تیر کړیدے پروفیسر
المجید افغانی وائی چه "دے یوغریب مُلا وو ـ مگر زړهٔ ئے باد شاه وو......"
رحمان بابا او خوشحال خټک د معرضو او د بیت بازئے د مقابلو په تردید کښے
رقی لیکی چه "د مشاعرو او معرضو خلاف یو بل غټ ثبوت دا دے ـ
یوخو رحمان یو تارک الدنیا سړے وو ـ بل دے د خوارے کورنئے نه وو
خوشحال د دهٔ په مقابله کښے د یوے مضبوطے قبیلے مشر وو ـ او هم دغه
کے زبردست شاعر وو." پښتانهٔ شعراء کښے لیکی " هر کله چه عبدالرحمان
با په یوه غریبه کورنئی کښے پیدا شویدے نو د دے نامتو شاعر ابتدائی
ملومات لا تر اوسه چا نه دی لیکلی دا ټولے حوالے ما په دے غرض پیش کړے چه
سونږ د ژبے ادبی ناقدان او تاریخ دانان د دے کړدو روایتونو په حقله مستند
علومات حاصل کړی ـ چه دنیا ته دے نیازه وُلی صاحبدل د ژوند داخلی حالاتو
ه خبر شی ـ

۲) د تتی خزانے زوایت نه معلومیږی چه رحمان بابا د ملا محمد یوسف
یوسفزی څخه فقه او تصوف لوستے وو ـ یو ښه عالم ربانی او عابد سړے وو ـ

ولے په ځوانئے دنیا پرېښوه - او په غرونو او بېدیا به سرو و - راورټی هم د دے تصدیق کوی - او وائی چه رحمان کانی لوے عالم سړے وو - ولے د درویشانو ژوند به ئے تیره وو - او دخدائے تعالیٰ په ذکر فکر کښے اخته وو - دنیا سره ئے ډېر کم تعلق لرهٔ۔

د رحمان علم او بیا د دهٔ درویشئی په دهٔ هم هغه پیشاړے کړیدے کومے چه د دنیا په ډېرو لویو لویو صوفیانو او عالمانو شویدی - اکثر صوفیائے کرامو - امام غزالی- مولینا روم- او نور ډېر صوفیائے کرام ابتدآء عالمان وو، او چه علم کښے ئے څومره تبحر راتهٔ نو هغه څومره ئے د خپلے کوتاه بینئے احساس هم زیاتیدهٔ - د خبر او نظر دا رېره تل پیښیږی - د نظر او خبر فرق علامه اقبال په خوند ناکه او واضحه ډیرا په کښے ظاهر کړیدے اکثر صوفیائے کرام آزار شوی هم دی ځکه چه خبر خو نظر نه لری - د هغے انحصار خو تش په دے وی چه مادا سے آوریدلی - فلانی داسے وئیلی دی - صاحب نظر ډیر څه وینی ډیر څه پرے تیریږی-هغه خپل واردات قلبی کښے بوخت وی- اهل خبر وریسے کوټک راواخلی او اوئے زنبی - چه اخر ته زمونږه به سر کو ولے کاتهٔ نهٔ کوے - مونږ چه څه وینو - ستا سترګے ډ هرو مرو هغه وینی - مونږ څهٔ ړاندهٔ یو؟ زمونږ مشران څه ړاندهٔ وو؟ د اناالحق ، ینا څرنګه او زغمو؟ مونږ دا آوریدلی، لیدلی، او کړیدی دا زوړ دایل دے - او تل استعمال شویدے - کله په درسته کله په غلطه - خیر نو د رحمان بابا سره هم وائی چه نکه د شمس‌تبریز دا کشاله شوے وه - پروفیسر عبدالمجید افغانی او راورټی ده ړه د رحمان او د هغهٔ وخت د عالمانو د اختلاف ذکر کړیدے - او عجب خان پکښے خپله تپه وئیلے ده -

هغه وائي چه دے خپل ورور عزيز خان په کوټه کښې بند کړے وو ـ چه د
مجنون نوم کم نسبه آشنا سره دوستي آشنائي پرېږدي۔

راورتي او افغاني دواړه مني " چه موسيقئ د رحمان په ژوند عميق اثرلرۀ ـ
رحمان حساس او ژوندے زړۀ لرۀ ـ او چه د رباب تار به او کړنګېدو او د هغې
نه به شيرينه نغمه را او لړزيده نو د رحمان رګ رګ به او رېدۀ ـ د رباب کوټه
به لکه د دۀ د زړۀ په تار لګيده ـ دے به اکثر د استغراق په حالت کښې وو ـ
چه نه به د ځانه خبروو او نۀ د جهانه " عجب خان وائي " چه د رحمان آشنا
مجنون په هندوستان کښې د بزرګانو د خدمت له کبله د برخې خاوند شو ـ
او چه څه وخت وطن ته رخصتيدۀ نو د خپل پير شاه شرف قلندر نه ئے د رحمان
د پاره هم څه تحفه اوغوښته ـ شاه شرف قلندر رباب کښې د رحمان
برخه مقرر کړه او راوائے ستولو ـ دے شرط دے کښې دا وو چه مجنون به تر هغې
رباب له کوتے نه ورنۀ وړي تر څو چه ئے رحمان نۀ وي لېدلے ـ او رحمان ته دې
هغه کوټه وهي کومه چه د شاه شرف له لوريه مقرر شوے وه ـ نو مجنون به سرشي
او رحمان به ژوندے شي هم د غه اوشوه ـ مجنون چه هغه کوټه او وهله نودے
خو په ځائے پريوت مړشو او رحمان درے ورځې بيهوشه وو ـ او چه په خود
شو نو حال ئے بدل وو ـ نظرئے اولګيدۀ ـ او د کائيناتو آئينه ورته ښکاره شوه ـ
د دے دصحت او عدم صحت په حقله هيڅ ثبوت نشته ـ او نه دا معلو مه ده
چه عجب خان په کوم سند دا هرڅه را ووړيدي افغاني هم د مجنون د رباب او
د چشتيه طريقې د راوړو ذکر کړيدے ـ هغه هم څه سند نه دے راوړے
دا وئيل ګران دي چه افغاني د عجب خان نه اخذ کړيدے ـ يا عجب خان د
افغاني په علم استناد لرلے دے ـ هر څه چه وي خود دے نه صفا ثابتيږي چه
استغراق له کبله رحمان لکه ملنګ شوے غوندےوو ـ دے دنيا نه بهئے د ده کوله

او اکثر به یې د ستر کو نه د اوښکو بهیر روان وو۔ وائي چه د زښتې ډیرے ژړا کبله د دهٔ په مخ کښې د اوښکو لارے جوړے شوے وے ۔ رحمان په خپله د دے حقیقت ذکر کړے دے ۔

ستا له غمه مې په مخ باندے ولے دی لړ مې اوبښته له حاله چه ولے دی

راورتي او افغاني دواړه لیکي چه د رحمان گوشه نشینۍ، زهد و تقو او آخر په عشق ربي کښې استغراق د دهٔ همعصرو علماؤ باندے ښه او نهٔ لگیدو د فنا او بہرت په دے مقام کښې د دهٔ نه د فرائیض مذهبي په سر ته ر سولو کښ کوتاهي راغله۔مونځ ترے پاتے شو۔وائي چه علماؤ دهٔ ته او وئیل چه ته د جم د مونځ نه ولے د ده کوے او ولے ته هر وختې په دے کوټنړئ کښې میشت مونځ کول او بیا سره د جماعت کول داد مسلمان اوُلنے فرض دے ۔ او چه څو د دے نه روگردا نه وی د هغهٔ مسلمانئے کښې شک دے۔رحمان باندے د اسلا نه د خارج کیدو فتویٰ او لگیده ۔ خو په علماؤ کښې څنے روشن او آزاد خیا کسان هم وو۔ دوئ د رحمان لړه مرسته او کړه ۔رحمان عالم او صاحبدل سړے و د هغوئ خبرہ ئے فکرته پریوته ۔ او وعدہ ئے او کړه چه آینده به په ټولو مذهب کارونو کښې د جماعت سره ملگرتیا لری ۔ او هیله مسلمان پاتے شو۔،،

افغاني په دے مقام د رحمان د همعصر علمائی دین په بد وئیلو کښې څه قد تیزی کړیده۔ علماؤ هر څه چه کړی ؤو۔ د هغوئ حساب د خپل مولیٰ سره دے د هغوئ د عمل نیک او بد د هغوئ په نیت پورے وو ۔ د یو بلند مقام مفکر ادیب، عالم، صوفي یا شاعر په ژوند کښې چه داسے واقعه پیښه شي نو د هغے ن د دغے صاحب علم و فن او قلب و نظر د لوړتیا او د هغهٔ د غیر معمولي شخصیت

اندازه لګول ګکار دی ـ نه دا چه نويسنده يا ناقد په معترضينو ښے شے ـ د دين زور ته غاړه کيښودل يعنے د عالم استغراق نه يا عالم بقا ته راتلل او بيا داسے ژوندکول چه چشمهٔ فيض ئے تر ننه جاري ده او ترڅو چه پښتو ژبه وئيلے او ليکلے شي دغه فيض به لا لا زيا تيږي ـ دا ډيرو ډير بلند منشه او لوړ شخصيت خاصه کيدے شي ـ که دغه علما متعصب يا لنډ نظر وو خو د دين په معامله کښے ئے لحاظ اونکړو ـ او د هغې نتيجه د رحمان موجوده کلام دے ـ

تلک اُمة قد خلت لها ما کسبت (سوره بقره)

(۴) هم ددے کشالې سره د رحمان د ديوان د موجوده هيئت سوال هم تړلے دے ـ د رحمان ديوان چا مرتب کړو؟ او څرنګ مرتب شو؟ د افغاني راځئ ده چه ملنګ عبدالرحمان د ملنګ نه صاحب سلامت شو ـ بيا هم د دے قابل نهٔ وو چه خپل اشعار ئے جمع کړے وے ـ د وستانو ئے جمع کول او د هغهٔ د مرګ نه وروستو ئے دا ديوان جوړ کو ـ مګر بيا هم ډير اشعار ضايئع شويدی ـ اوس هم د هغهٔ په ديوان کښے ډير اختلاف دے ـ ډيرے غزلے دی چه موجوده ديوان کښے نشته مګر د پښتنو په مجلسو نو کښے وئيلے کيږی راوړتي ليکي، "معلوميږی چه د رحمان عادت وو چه شعرو نه به ئے او وئيل نو د هغو نقل به ئے کله نا کله خپلو خاصو دوستانو ته وا ستولو ـ د دهٔ دو ستانو به دغه ځان سره جمع کول او ساتل ـ ولے يو د بله خبره ؤو ـ هر آشنا به ئے دا خيال کړو چه د دهٔ د مرګ نه پس به دغه يو ځائے کړی ـ د دهٔ دوستانو هم د غسے اوکړهٔ ـ او چه دے مړ شو نو هله يو بل ته دا حالات معلوم شو "ـ راوړتي ـ ښکښے ليکي ـ" چه د دهٔ څينو نيمګړو دو ستانو به دے غرض د رحمان په کلام کښے خپل کلام ګډ

کړو چه دا معلومه شي چه دویٔ څخه د رحمان د کلام ذخیره د نورو نه زیا ته ده ـ کلام به د دویٔ وو او کسر به ئے پرے د رحمان او ونیلو د دے نتیجه دا شوه چه د دهٔ د دیوان دوه د فترے یا حصے جوړے شوے ـ ولے خدا ئے پاك ته دا نه وه منظوره چه د رحمان په ښهٔ نوم دِ تور پورےشي۔دا ټګی برګی به وخت معلومه شوه ـ ځکه چه د رحمان څنے دوستان لا ژوندی وو ـ او د هغهٔ و ئیلي اشعار ئے پیژندل هم ـ دویٔ دغه خوشی ٔبوس ترے چانړ کړهٔ ـ او ٔسوچه غنم پاتے شو ـ دا موجوده دیوان هم د هغهٔ سوچه کلام دے چه مونږ ته را رسیدلے دے ـ بیا هم په ډیرو نسخو کښې اختلاف موجود دے څینو کښې یوه نیمه مصرعه زیا ته کمه ده ـ او څینو کښې پوره پوره غزلے دی چه نشته ـ په څینو کښے داسے غزلے دی چه ډیرو کښې نشته ـ " پښتنا نه شعراء ټولړی توك کښې په دے حقله دا رائے ده " څنے مورخین دا خیال لری چه رحمان بابا خپل دیوان په خپل ژوند لکه د نورو اکثرو شاعرانو نهٔ دے مرتب کړے ـ بلکه دهٔ به چه کوم نظم او لیکه نو خپلو دوستانو ته به ئے د تحفے په طور و راندے کوم۔درحمان د وفات نه روستو دغو قدردانانو دوستانو د رحمان دیوان په دے موجوده صورت مرتب او خپور کړو ـ محققین مؤرخین دے خبرو ته اهمیت نه ورکوی ـ او وایٔ چه رحمان بابا خپل دیوان په خپل ژوند مرتب کړے او غونډ کړے وو۔ لیکن دا موجوده دیوان ټول اشعار نهٔ دی ـ ځکه د رحمان ټول اشعار دے موجوده دیوان کښې نشته ـ مګر د پښتنو په خولو کښې جاری دی چه پښتانهٔ مجلسیان ئے په ډیر شوق سره په خپلو مجلسونو کښې وائی او د رحمان بابا اشعار ئے ګڼری۔"

افغانی او راورتی په دے یو خولهٔ دی چه رحمان خپل اشعار په خپل ژوند نهٔ دی غونډ کړی۔ او نهٔ ئے خپل دیوان په خپله مرتب کړیدے دا کار د دهٔ مینو دوستانو پوره کړے دے۔ پښتانهٔ شعرا کښې د محققینو مؤرخینو په سند سره دا وئیلےشویدی چه "رحمان په خپل ژوند خپل دیوان غونډ

او مرتب کړے وو ،،۔ په دے کښے موازنه ډیره گرانه ده وجه دا ده چه نهٔ افغانی او راورتی د څه مستند ماخذ حواله ورکړے ده او نهٔ په پښتانهٔ شعراء کښے د څه خاص ماخذ پلؤ اشاره شته۔ دا سے معلومیږی چه دے دریواړو فاضلانو مصنفینو د رحمان د کلام د مطالعے نه د خپلے رائے استنباط کړیدے۔ مثلاً افغانی وائی چه د رحمان دوستانو دا دیوان غونډ کړے دے خو مکمل نهٔ دے۔ ځکه ډیرے غزلے د پښتنو په مجلسونو کښے وئیل کیږی چه دیوان کښے نشته یعنې که چرے رحمان په خپله دیوان غونډ کړے وے نو ولے به داسے غزلے پاتے کیدے چه مجلسیانو ته یا دے دی او مصنف په خپل دیوان کښے نهٔ دی شامل کړی۔

راورتی په دے سلسه کښے څه قطعی رائے نهٔ ده ورکړے خو رجحان ئے دے طرفته دے۔ چه د رحمان دیوان ، دهٔ دوستانو مرتب کړے هم وو او بیا په هغے کښے کمے بیشے هم هغویٔ کړے وو۔ خو خیر د دهٔ صادقانو او پوهه ملګرو د دغے تصحیح اوکړهٔ او اوس دیوان صحیح دے ۔ ولے بیا هم راورتی په خپله د شپیتو نسخو د مقابلے نه پس خپل انتخابات کړی دی چه پکښے ځنے نسخے د رحمان د مرګ نه لږه زمانه پس مرتب شوے او لیکلے شوے دے۔ ګویا که دهٔ په تحقیق اعتماد لرلے وو ۔ د نسخے په تشه موجودګی ئے ملا نهٔ ده تړلے ۔

عبدالحئی حبیبی دا قطعی خیال لری چه رحمان خپل دیوان په خپل ژوند غونډ او مرتب کړے وو ولے دا موجوده دیوان نامکمله دے ۔ ځکه ځنے اشعار مجلسیان وائی او د رحمان کلام ئے ګنړی، خو دغه کلام دیوان کښے نشته ۔ رحمان دا ولے په خپل دیوان کښے نهٔ دی شامل کړی؟ د دے هیڅ وجه نهٔ ده بیان شوے ۔

زما خپل قیاس دا دے چه د استغراق په دور کښے د رحمان کلام د دهٔ

دوستانو جمع کړیدے ۔ او چه کوم وخت بیا رحمان د دنیا ژوند ته په راګرځیدو مجبور شو۔ او د دهٔ کلام کښے د اولس او قوم په اخلاقو د رائے زنئ کیفیت پیدا شوے دے۔ نو شاید دهٔ ته دا خیال پیدا شوے وی چه راشه دا دیوان راغونډ کړه دا بعید از قیاس نهٔ ده ۔ دا هم ضروری نهٔ ده چه شاعر چه څه او وائی نو ګنړی تل دِ هغه د دهٔ د حافظے په کتاب کښے موجود وی۔ ډیر څله شاعر ته خپل کلام نهٔ وی یاد ۔ ولے دوستانو شاګردانو ئے یاد لرلے وی ۔ کیدے شی چه د ترتیب په وخت هغه ټول خلق د دهٔ خوا ؤ شا موجود نهٔ وو ۔ او ځکه د دے ډیرے غزلے په ملک کښے خورے وے۔ ولے دیوان کښے شاملے نکړے شوے۔ تر دے حده زما دا رائے هم هسے قیاس دے او لکه د یو مقلد سے کوشش کړیدے چه د هر چا د رائے د قدر و قیمت اندازه اولګومه زما په لاس کښے هم هیڅ سند نهٔ دے راغلے صرف د کوزو د وینا یوه اډانړه مے اودروله ۔ کاش چه چا بل به دے سمه پخه آبادی اوکړے۔ یائے دا تس نس کړے، او د دے په ځائے څه بل څه بناء کړے ۔

یوه خبره مے البته زړهٔ له راځی او که اوشی نو بدی به ئے هم نهٔ وی د دنیا د هرے ژبے د استاذانو په کلام کښے یو خاص رنګ او خوند وی چه هغه هم د هغے شاعر یا نویسنده سره مخصوص وی که هر څوسره څوک د هغے د بدلولو، پټولو یا غلا کولو کوشش اوکړی هغه خپل خوند رنګ او بوئی نهٔ بدلوی۔ د خواجه حافظ شیرازی (رح) یا مرزا بیدل یا امیر خسرو یا مولانا روم (رح) یا شیخ سعدی (رح) کلام په هیڅ صورت نهٔ پټیږی ۔ د مرحوم علامه شبلی نعمانی (رح) یا د افغانستان د فارسی شاعر سرور ګویا پهٔ وړاندے خو دِ د یو استاذ شعر په بل پورے چا ترلے وے یا دِ اوتړی ۔ عالمان نظر لری او هیڅوک ئے نشی تیریستے۔ خوند رنګ او بوئی د هر کلام خپل خپل وی۔ دا خو خیر ما د داسے خلقو تذکره اوکړه چه فوق العاده مشق او حافظه

لری۔ زمونږ غوندے د ادبی میدان ځرپوسمار هم پوهیږی چه د حافظ شیرازی (رح) په کلام کښے د بل چا کلام لکه مخملو کښے د ټاټ پیوند وی ۔ په عربی ژبه کښے د امرؤالقیس یا متنبی کلام همیش ځرګند ځانے لری۔

د شیکسپیر یوه فقره لا تر اوسه چا انګریز مصنف ځان ته منصوبه نهٔ کړے شوه۔ او زمونږ په خپله زمانه کښے د اردو ژبے د مشهورو شاعرانو کلام لکه غالب، میر، جګر مراد آبادی او حسرت موهانی وغیره وغیره کلام فوراً پیژندے شی۔ او د علامه اقبال (رح) ارشادات خو داسے دی چه که څوک د هغهٔ د یو لفظ د غلا تکل اوکړی نو نن د پاکستان هر ماشوم د هغهٔ غلا نیولے شی۔ هم دغه حال د نثر نویسانو هم دے نو چه دا کیفیت مسلم اوګنړلے شی نو ما ته دے کښے هیڅ ګرانه نهٔ ښکاری چه د رحمان غزل به وئیلے شی او یو پښتون به د هغے کره کوټه معلوم نهٔ کړے شی۔ د پښتو ژبے یو شاعر لا تر ننه د دے !هل نه دے ګرځیدلے چه رحمان د پښتون نه هیر کړی۔ زمانے ترقی کړیده او ښهٔ ښهٔ شاعران پیدا شوی دی او اوس هم شته خو که چرے غیر فانی شعر کښے د لطیف احساساتو او جذباتو سره د روحانیت امتزاج ضروری وی۔ نو د روحانیت دغه مرتبه لا د چا پښتون شاعر په برخه کښے نهٔ ده راغلے۔ او ځکه رحمان د پښتنو د علاقے په زړګی کښے زرغون او خیرازه ولاړ دے، او ولاړ به وی۔

د رحمان دیوان ځرنګه مرتب شو او چا مرتب کړو؟ دا سوال به ځانے پاتے دے۔ او که زما دا معروضیات د چا فاضل ورور تر نظر لاندے راغلهٔ او هغه پخپله په دے کښے قلم اوخوزه وو با که زهٔ ژوندے ووم ما ته ئے خپل معلومات را اوبخښل نو شاید چه زما دا پریشان کن استدلال به زیات واضح شی۔

د رحمان او خوشحال خان خټک یو بل سره د لیدلو کتلو یا د معرضو او مشاعرو په حقله هم مؤرخینو کښې څه قدر اختلاف رائے دے۔ افغانی لیکی ''بعضے خلق وائی چه د عبدالرحمان او خوشحال خان خټک یوهٔ زمانه وه۔ او مقابلے ئے هم شوے وے۔ مګر دا غلطه ده۔ د عبدالرحمان د شاعرئے او استغراق دور په ۱۱۱۳ هجری کښے وو۔ یا چه عبدالرحمان باندے ړندو ملایانو حکم کوو نو خوشحال خان نولس کاله ړومبے ۱۶۹۱ عیسوی کښے د ارمانونو ډک زړهٔ قبر ته وړے وو۔ کیدے شی چه عبدالرحمان خوشحال خان لیدلے وی ځکه چه خوشحال خان څه معمولی سړے نهٔ وو .....،،

راورټی لیکی ''د ځنې بیانونو نه معلومیږی چه رحمان د مشهور جنګیالی او نامتو شاعر خوشحال خان همعصر وو۔ او وائی چه دوه درے ځله د دوئ تر منځه مشاعرے او معرضے هم شوے وے ولے دا درسته نهٔ ده بیشکه د خوشحال خان د ژوند په وروستو ورځو کښے رحمان بابا زلمے وو۔ ولے په دغه زمانه کښے دے کچه خوله وو۔ عان؛ سے د خوشحال د نمسی افضل خان همعصر وو۔ افضل خان د پښتنو د مشهور او اعلی تاریخی کتاب '' تاریخ مرصع ،، او نورو قابل قدره کتابونو مصنف وو۔ د دے شاعرانه مقابلو قصے غلطے په دے هم ثابتیږی چه رحمان او حمید دواړو د ګل خان او جمال خان په افسوسناک انجام لوئے لوئے نظمونه لیکلی دی د دوی د مرګ دا واقعه په ۱۱۲۳ هجری کښے شوے وه د دے واقعے نه پنځویشت کاله آ ګاهو خوشحال مړ شوے وو ،،۔ راورټی مخکښے وائی ''چه د دے خلاف د ټولو نه مضبوط دلیل دا دے چه رحمان یو درویش او ګوشه نشین سړے وو۔ د دهٔ حیثیت معمولی وو۔ او خوشحال خان د یوے قبیلے سردار وو او د دهٔ هوسره لوئے شاعر وو۔ یعنے د دوئ تر مینځه د مشاعرو او بیت بازئے څهٔ موقعه نهٔ شوه پیښیدے ،،

'' پښتانه شعراء،، کښے عبدالحئی حبیبی وائی چه ځنے پوهان دا

هم واني چه رحمان بابا په ځلمیتوب کښې یوه پلا د پښتو پلار خوشحال سره په اکوړې کښې لیدنه هم کړېده ۔ او د پښتو دے دوه لویو شاعرانو سره لیدلي دي د دے روایت سره سم موږ د دے خپل نو میالي شاعر د ژوندون کلو نه ۱۰۵۰ هجري ځخه تر ۱۱۲۰ هجري پورے تخميناً کولے شو ځکه چه خوشحال خان ۱۰۲۲ هجري کښې زوکړے وو ۔ او د رحمان بابا ژوند د دهٔ له وینا ځخه د شاه عالم تر جلوسه (۱۱۱۸ هـ) یقیني دے،،

په دے کښې هیڅ شک نشته چه د پښتنو دا دوه بلند منشه او لوړ شاعران همعصر وو ۔ یعنے دواړه په یو وخت کښې موجود وو ۔ ولے د دے دا معنیٰ نهٔ دي لازمي چه دواړه همزولي وو ۔۔ همزولتوب او همعصري دے کښې لوئے فرق دے ۔ زموږ اکثر شعراء د علامه اقبال همعصر دي ۔ ولے د هغهٔ همزولي نهٔ دي ۔ په پاکستان، افغانستان، هندوستان، ایران، عربستان کښې نن په زرګونو شاعران موجود دي سرور ګویا د اقبال همعصر دے مګر همزولے نهٔ دے۔زموږ ډیرو پښتنوشاعرانو د پاکستان، هندوستان،افغانستان شاعران لیدلي دي دا ضروري نهٔ ده چه دویٔ د همزولے وي ۔ ځکه دا ثابته شوه چه رحمان او خوشحال همعصر دي لیکن دا چه دویٔ یو تر بله مشاعرے کړیدي ۔ او لکه د زړے زمانے د شاعرانو نے یو بل سره ایرنے وهلے دي دا خوشے او بے بنیاده خبره ده دا دواړه شاعران دومره اوچت او درانهٔ وو چه دویٔ ته د اخونانو بیت بازے نسبت کول دویٔ ته سپک کتل دي ۔ دواړو په خپل خپل رنګ خپل احساسات ښکاره کړیدي ۔ د آونس په ژوند نے رانے زنئے کړیدي ۔ او پښتونخوا لا تر اوسه د اندازه نهٔ ده لګولے چه نے د دواړو دردمندو مفکرانو خپل قوم له د ژوند هغه فلسفه ور کړیده کوم چه د اسلام خادم پښتون ملت د بقائے دوام دپاره ضروري ده ۔ په ځائے د دے چه مفکرین د دویٔ د فلسفے اخراج او کړي او هغے له دا سے رنګ ورکړي چه د پښتون ملت په ژوند هغه خور شي،

پښتنو لا د دے دوارو ترمنځه هغه نسبت او رشته نۀ ده لیدلے کومه چه ښکا
د "خوشحالا او دولتا سے غلامان دی،، او یا "تورے زلفے دِ په سپنو لیچو زانګ
شان خود ساخته اشعارو استناد کول او بیا دا وئیل چه د دے د
ترمینځه شاعرانه مقابلے شویدی د خپل تاریخ نه د بے خبرئ او د یو
د بے علمئ او بے توجهئ ظاهر ثبوت دے۔

خوشحال خان خټک د شاجهان اورنګ زیب مغل سره چپرے وهلے
او رحمان د شاه جهان اورنګ زیب او شاه غالم دربوارو زما نه لیدلے وه
چه د شاه جهان په دوران کښے کوچنے وو دے دوارو خواخوږو د پښ
ملت د مادی او روحانی انحطاط د اثر لا ندے وینا کړیده۔ یو په جوله، ؛
جنګ، بغاوت او کشمکش د دغے مقابله کوله او بل د پښتون د رو
قوت د فقدان ژړا کړیده۔ شاعر که مفکر نۀ وی او په څه نه څه شکل د
ماحول عکاسی نۀ شی کولے نو هغۀ ته شاعر نۀ دی وئیل پکار۔ هغه
دوره‌سار وی او ځکه د شاعر یا مشر یا رهنما او لیډر یا ادیب او مفکر د
تناؤ د دۀ ددے صفت سره تړلے وی ۔ علامه اقبال ولے حیات جاودانی بیامون
د مسلمان نه ځان ورک شوے وو ۔ او د چا نه ځان ورک شوے وی نو
په جهان څۀ او لټوی جهان خو د ځان مظاهره وی ۔ علامه مسلمان ته
ورکه لاره او ښودله ۔ د هر ادیب او مفکر او رهنما دا کار وی چه د اول
احساساتو، جذباتو عکاسی اوکړی ۔ او په خپل خدا داد جوهر سره د هغے محا
سر ګند کړی ۔ او د معائبو نے علاج او ښوی ۔ د خوشحال او رحمان د شاعر
حلقه د دے ارخه نظر کول ضروری دی ۔ د خوشحال په شاعرئ کښے لکه
مغربی شعراؤ هر مضمون شته ګل او بلبل، باغ وراغ، خار وخس، لنډه دا
دا انفرادی او ‌اجتماعی ژوندو په هر اړخ د خوشحال شاعرئ چپاؤ کړے و

او د خپل خدا داد قا بلیت، بلیغ نظر او لوړهمت په بر نتـځ په خپل ژوند کښې په هره پیښه خپله رائے ورکړیده. بلکه زما په معلوماتو کښې په ټول مشرق کښې د قومیت د نظرئے داسے مفسر او موجد نهٔ دے راغلے چه هغهٔ د مذهب او ملیت تر مینځه داسے تطابق راوستے وی د پښتونیت یا پښتو نوئے نظریه د خوشحال د تورے پړق او ژبے شرق دے د پښتون ملت د ننګ ناموس په خاطر خوشحال ُتوره ترملا کړے وه ولے د خوشحال د کلام د تنوع او دهغه د اسلامی جذبے او علمی معلوماتو مقتضا دغه وه چه د یو داسے ملت چه دو سره پټ جوهر لری د دوسره فطری ذهانت حامل دی داسے کوتلے او توانه هلې لری، دومره کلک او ټینګ مسلمان وی چه د اسلام په ننګ و ناموس د مغلو سره ملا اوتړی او ټول هندوستان وړته رات کړی، او بیا انجام دا شی چه "تورے دِ لالا وهی، نورئے دِ عبدالله وهی" په مصداق د بیا هم دے په خپلو سمستو کښے د لوړے غزلےوائی۔ په تن بر بند او به کیدهٔ وړے دِ یژن کوی ۔ د داسے ملت ژوندون کښے که د ملیت جذبه د حقیقی اسلامیت سره یو شی نو د اسلام د بیرغ حامل به تل هم دے وی، ولے د خوشحال خان دا ژړا وه چه پښتون سره د دے رنګ رنګ اوصافو بیا هم سر وهلے بر وهلے ګرځی، خوشحال که یو نامتو جرنیل وو نو ورسره بنه عالم او لوړ شاعر وو، د دغے زمانے د مشرقی ملکونو شعراء اکثر د تصوف په رنګ کښے غرق وو، رحمان د پښتون ملت د صوفیاؤ شعراؤ واحد نمائنده دے، او داسے شعرئے کړے دے چه تر څو دا ژبه او دا وګړے په دے دنیا کښے موجود وی نو د رحمان په اشعارو به هر پښتون د خپل زړهٔ د درد تسکین راولی، رحمان دنیا پریښے وه، او د استغراق حالت ته رسیدلے وو، خو بیا هم رحمان تش او بے عمله صوفی یا خوشے ډانګ سار او چرسی بنګی ملنګ نهٔ وو، او نهٔ د لال شاهباز قلندر وو چه ستهٔ ئے غته وی او غواړی خیر۔

رحمان حقیقت کښې هغه ملنګ وو چه په خپله ئې د دنیا کټې په نیمګړو ځیزونو ملا نهٔ تړله خو د خپل خواږُ شا د ژوند او د آولس د حاله هم بے خبره نهٔ کښېناستو، د دهٔ کلام تر اوسه صرف مونږ په دے سترګه کتلے دے چه خواږهٔ او پاستهٔ اشعار ئې دی، د عشق او مینې د لطیفو او نازکو جذباتو یو ساده او فنکارانه اظهار دے، زړهٔ مے ډ ډ دے، راځه چه رحمان پاندے ئې تش کړو، پښتونخوا بیشکه چه د رحمان ډېر زیات قدر کوی، ولے دا د رحمان د شاعرئ د یو اړخ سره تړلے دے، راځئ چه زهٔ تاسو د یو یورپی مصنف د خیال میدان کښې او ګرځوم، په مستشرقینو کښې زهٔ د راورټی اندازه ځکه مستنده ګنړم چه دهٔ د پښتون ملت د جذباتو احساساتو تر ډیره حده اندازه لګولے ده د یو غیر نه د دے نه زیاته طمع لرل به بے انصافی وی، راورټی د پښتو ژبے په باریکو پوهیدو، د پښتون ملت د زړهٔ په ژوره کښې ئې اوبهٔ څښلے وے، او ځکه داسے خبره کوی لکه چه سکټ پښتون وی ، اګر که پښتون دغسے د خپله ځانه خبر نهٔ دے، خیر راورټی په خپل تمهید کښې لیکی:۔

"دا خبره یاد لرل پکاردی چه دا اشعار (یعنے کوم چه دهٔ غونډ کړی او شائع کړی دی) د داسے خلقو د خولے ی چا ته چه د ژوند هیڅ قسم آرام او آسائش لهٔ وو حاصل، ولے او ګورئ چه د دے پښتنو شاعرانو جذبات او احساسات څومره لطیف او نازک دی، دا د هغه شان خلقو اشعار دی څوک چه زمونږ د ملک (انګلستان) په سرحدونو پنځه سوه کاله آګاهو استوږن وو، دوئ اکثر په جنګ و جدل او دښمنو کښې بوخت دی، او د چا وګړے چه لا تر ننه هم دغسے ژوند کوی، ولے او ګورئ چه د دوئ په اشعارو کښې څومره درد او سوز دے او د دئ خیالات او جذبات څومره فیاضانه لوړ او بلند منش دی دوئ په لوړو شاندارو غرونو کښې آباد دی هواد ئې ډېر ښکلے او میدا نونه او

وادئ ئے ښېرازه او زرخیزه دی۔ ځو د ژوند باقي ضروریات پکښې ډیر په ګرانه په لاس راځی۔ ولې د دوئ تشبیهات خوږمره ساده، او ښشپړ او د فطرت سره څه ښکلې سمون لری۔ اوګورئ چه د دوئ د خپل وطن سره څومره زباته اولیونئے مینه لری ۔ د آزادئ رښتینې روح هم په دوئ کښې موجود دے۔ د دوئ په شاعرئ کښې دا ټول اوصاف او بیا د بیدیا او لوړو لوړو غرونو او چمنونو سره مینه صفا ښکاری ۔ دا خبره هم یاد لرل پکار دی چه پښتانهٔ شعراء سوا د احمد شاه ابدالي یا خوشحال خان او د هغهٔ د ځامنو نه ا کثرو د خپلو کلو نه هډو چرے باهر سفر نهٔ وو کړے ځنے پکښې درویشان وو او ټول عمر ئے د خدا ئے په ذ کر فکر کښې تیره وو ۔ دے شاعرانو ذ شهرت حاصلولو د پاره شعرونه نهٔ وئیل او نهٔ ئے دا خیال وو چه زمونږ د زړهٔ ؛ پردو دننه کوم احساسات او افکار دی دا به ئے د یوڅو یارانو آشنایانو نه نور چا ته هم اورسی او راتلونکی نسلونه به ئے لولی ،،۔

د پښتنو د شاعرئ په حقله د راوړتې دا رائے هم د قدر قابله ده۔ دے لیکی:۔

” د مشرق شاعری او خصوصاً د مسلمانانو شاعری د مغرب د شاعرئ نه بالکل جدا هیئت لری، او که یوکم علمه او بے خبره سړی ته ئے پیش کړے نو هغه ته به داسے معلومه شی چه دا خو هسے د شهوانی جذباتو نه د مغلوبو خلقو د احساساتو اظهار دے ولې دا رائے د پښتنو په شاعرئ صادقه نهٔ راځی۔ دا د پاړ سو (یعنے د پارسی بانو) د شاعرئ په حقله وئیلے کیدے شی۔ د پښتو په شاعرئ کښې د ایرانیانو مبالغه او لفاظی نشته او لکه د زړے زمانے د عربو شاعرئ ساده ده پښتانهٔ وی او که نور ایشیائی شاعران وی یو عام مضمون چه د دوی زړونو پورے وی هغه عشق دے دا عشق انسانی عشق نهٔ وی، بلکه عشق الٰهی وی۔ دے کښې د نیمګړے دنیا ګئے خوشوخرو او بےوقره اولس نه نفرت او د هغو نه ځان په ډډه ساتل او د خدائے سره

زړهٔ ترل اصلي موضوع وي، خو پښتنو کښې ډاسې شعراء هم شته لکه خوشحال خان او نور چه څه نه زړهٔ کښې راشي نو لکه د مغرب د شعراؤ هغسې او وائي».

د پښتنو او نورو مشرقي ملکونو په شاعرئ کښې ما به الاشتراک د عشق حقيقي سندرې او د دنيا کښې د بې وفا څيزونو نه نفرت بيشک موجود دې۔ او د ايران د ثقافت اثر به خواه مخواه په دوئ پربوته۔ د مغلو نه مخکښې خو خير اسلامي او مذهبي رنګ زيات غالب وو۔ او پښتنو جنګيالو به توره او په اخلاص او بې لوثه خدمت په هندوستان کښې اسلام خور کړې وو. ولې د مغلو نه پس چه ايراني رنګ غالب شو نو لازماً د دغه خاورې خاصه تصوف (يعنې د دنيا نه داسې لاس راکښل چه ښه په ښه کښينه، څه له کوتې مه وروړه) د پښتنو په حصه کښې هم څه لږ غوندې او رسيدو د مغلو ابتدائي دور اسلامي وو، او چه څه وخت همايون د ايران د شاه طهماسپ په مرسته بيا د هندوستان واګې تر خپله لاسه کړې او د شيرشاه سوري ځامنو ور نه ميدان پريښودو نو بيا دا اثر عام شو ۔ مغلو فارسي خپله کړه او دغه ايراني تصوف د هندوستاني عمسا سره اغږلې کيدل شروع شو۔

پښتون د هر تورزن سره ملا ترلې وه ۔ او چه د اسلام نوم به راغې نو د دهٔ توره به د ټولو نه اول پرق واهه۔ ملکونه به ئې فتح کړل او چه چرته به لاړ نو هلته به ئې د اسلام بوټې نال کړهٔ ۔ او واپس به بيا خپلو خړو غرونو ته راغې ۔ سلطنت به د نورو شو او مټ به د دهٔ وو ۔ خير د داسې دور پښتنو شعراؤ به خواه مخواه دغه اثر تر څه حده قبله وو ۔ ولې بيا هم پښتنو خپل مخصوص صفت يعنې پښتو او پښتونولي قايمه اوساتله ۔ او هيچرې داسې بې لاسو او بې پښو نه شو چه نهٔ د ځان په ښهٔ راتلهٔ ، او نهٔ د جهان ۔ د دوئ په شاعرئ کښې که هر څومره تصوف او قنوطيت نفوذ کول غوښتل، خو د دهٔ د فطرت شادابي ، د دهٔ د غرونو هيبتناکې منوکې او د دهٔ د تنګو

غږه‌هار دے په دے مجبوره کړو چه محکم یقین او لری ـ او د عمل پیهم کاربند اوسی۔ د سکندر نه ئے واخله تر دے دمه پښتون سره د قسم قسم طوفانونو او سیلابونو خپله ستړه قائمه دائمه ساتلے وه ـ دا د ده ملی صفت دے ـ دا د پښتو اصلی فلسفه ده ـ او زما په عقیده عین اسلامی جوهر دے چه دے وګړی کښے موجود دے ـ رحمان ته او ګوری چه بالکل صوفی دے ـ د حافظ شیرازی او د ده رنګ د لرے نه بالکل یوه پاژه لری ـ خو که د نزدے نه ئے اوګورے نو د رحمان خپل رنګ جلا ښکاری۔ بیشکه چه مینه یعنے د عشق حقیقی سندرے د ده خاص رنګ دے، د دنیا په ناکردو ده ډیر څه وئیلی دی ـ ولے د اولس په هره ماته ګوډه دے خپله ذاتی رائے هم لری ـ د ده په کلام کښے هغه خوند او شان موجود دے کوم چه د یو ډیر اوچت مذهبی رهنما په کلام او تلقین کښے وی ـ که عالمان ئے ګوری نو خپله ورکه پکښے مومی ـ او که په حجرو او مجلسونو کښے ئے بے تعلیمه رباپی راواخلی نو د ساده پنسه شرپ زمیندار زړه غوښ غوښ شی ـــ

"رحمان د هر چا د زړه خبرے په خپلو خوږو الفاظو کښے کوی،، د ده آواز د هر چا غوږو ته رسی ـ ښځے او نر هر څوک بے ساخته د ده د ساده الفاظو سره غورزنګ خوری ـ د ده توری د هر چا زړه ته پریوزی ـــ

د سالکانو وینا ده چه که د قرآن نه سیوا په بل څه مونځ روا وے نو د قرآن په ځائے د رحمان په اشعارو به دوئ مونځ کولے، ښو ښو خلقو د ده د دیوان په اشعارو فالونه نیولی دی۔ او د 'پټے خزانے' مصنف خو وائی چه "ظل‌الله پادشاه حسین کاتبان واستول او د پیښورے د عبدالرحمان علیه الرحمه" د دیوان نقلونه راوړل او په قندهار کښے علماؤ او زهادو 'ورکبل او اوس ډیر دی ـ فقراء او د خدائے دوستان د عبدالرحمان

شعرونه ډیر لولی او خوښه وی ـ او عام خلق فالونه پرے ګوری ـ حتیٰ چه ښځے هم دا کتاب ډیر وائی ـ او خدائے تعالیٰ د دهٔ په وینا کښے هسے برکت اېښے دے چه د هر خوږمن زړهٔ دارو پرے کا ـ او هر غریب او محتاج مستغنی کا» ـ دا مصنف مخکښے لیکی "چه ګرګین خان (د ایران د بادشاه حاکم) په قندهار جور و ستم تر حده ډیر کړو نو حاجی میرویس د دوئ د مقابلے د پاره پښتانهٔ را جمع کړل او بیا ئے د رحمان بابا په دیوان کښے فال اوکتهٔ ـ او هم په دغه تول وکړی عمل اوکړو ـ او د ګرګین د لعنت نه پښتانهٔ خلاص شو» ـــ

خبره اوږدیږی صرف یو سوال باقی دے او هغه دا چه د رحمان په کلام کښے ولے دومره درد، دا سے خوند او رنګ دے، دا ولے عالمګیر دے، ولے د هر چا د زړهٔ ملهم دے ـ عالمان هم د دے قائله دی او زاهدان هم ـ مستانه هم په دے نشه کیږی او ملنګان هم په دے د هو حق چغے پورته کوی ـ او د قلندرانو د غاړے خو هډو تعویز هم دا دے ـ غرض دا چه دیوانه او فرزانه دواړه رحمان ته رجوع کوی ـ د ملت د هر فرد او د هرے طبقے یا د هر ادبی مکتب نمائندګی زهٔ کولے نهٔ شم ـ که نهٔ وی نو د هر چا د خیال او فکر او جذبے ترجمانی به مے کړے وه ـ او هر چا چه دا تمهید لوستے نو د خپلو احساساتو او افکارو سره سم څه جواب به ئے هم موندلے وو ـ زهٔ نهٔ په فرزانهٔ کښے راځمه او نهٔ په دیوانهٔ کښے ګډ یمه ـ د یو عام معتقد په انداز سره دا عرض لرمه:ـــ

۱ ـ چه رحمان فطرتاً یو فنکار وو ـ د یورپ د ادب او فن ماهران ناقدان دا رائے لری چه د تولو نه ښهٔ او مکمل فن کښے هډو فن وی نه، ښهٔ فن کښے فن پټ وی یعنے فنکار چه په خپل میدان کښے دا سے مکمل مهارت حاصل کړے وی ـ او د خپل فن اظهار دا سے ساده او

آسان کړی چه د فن مشکلات هلو چا ته ښکاری نه۔ هر څوک دا محسوسه وی چه ویځ دا شاعری څومره ساده او آسان شے دے۔ رحمان خو سم لکه په پښتو ژبه خبرے کوی او هغه وائی څه چه زما زړهٔ کښے دی۔ او داسے چه زهٔ، تهٔ او شرفداد او نوبتے ئے کوی۔ هسے ګوره چه د ے څه په ساده او فنکارانه طریقه سره د خپل اشنا سره ګډه وی :- ع

تهٔ چه ما ته وائے چه په څه کوے ژړا
نهٔ در معلومیږی دغه خپل جور و جفا

تهٔ جور و جفا کړے زهٔ ژړا کوم دلبره
ستا که دغه نهٔ وے دا به هم نهٔ وے زما

دا خصلت که ستاوی، که هم تل په دغه شان وی
نهٔ را معلومیږی د دردمند د زړهٔ دوا

یو د ستا مانړے شی بل غرور د رقیبانو
وار په وار مے وژنی کله هغه کله دا

هر چه عاشقی کا، که په قطع افلاطون وی
زهٔ خو ئے مجنون ګنړم که نن وی که صبا

... نه دی رحمان تا غواړی دلبره
دا زما رضا ده باقی هر چه ستا رضا

دا خو هسې د انبار نه یوه دانه څکل دی، خو که په غیرو د
دے کلام اثر داسې وی چه زړهٔ ئې توپ او وهی، سترګې ئې لمدې
شی نو په پښتون بچی به د دے څومره اثر پریوزی۔

(۲) د هر فن‌کار د فن اثر د هغهٔ د زړهٔ د جذباتو د تندئې په اندازه وی
چه جذبات څومره ژور او احساسات څومره لطیف او رښتونی وی
د فنکار شاهکار هم هغه هومره غوسه کوی۔ رحمان صاحبدل وو۔
د خبر نه تیروتے وو۔ او د اهل نظرو په تولی کښې ورګډ وو۔
د مجاز نه د حقیقت میدان ته آوختے وو۔ یعنے د فنا نه بقا ته
راتیرېدلے وو ۔ نو د فنا، بقا، خبر، نظر استغراق او هوش تولو
منزلونو نه خبردار وو ۔ قدرت ورله یو لړزنده زړهٔ یو رهنده ځیګر
ورکړے وو ۔ بینا سترګې او رسنده سر او بیا یوه شیرینه پسته او
رنګینه ژبه چه د دے علم لا مله ګویانه شی نو د فنکار فن د
فطرت ترجمان شی ۔ د قدرت د پټو حقائقو څرګنده‌وونکے او ګرزی
په لکونو سترګه‌ور او غوږه‌ور آوړی راوړی او لکه د نرګس
بے نوره بے بصیرته سترګے ګرزوی ۔ داسې بینا د خپلو سترګو د
لیدو او د خپل زړهٔ واردات د دے بے خبرو، بے نظرو، ګرزیدونکو
په ژبه دوئ ته د دوئ خپل ځان اوښوی ۔ دا خلق بیدار کړی
د دوئ ماحول ژوندے کړی ۔ دوئ د خپلے هستئے وجود نه خبردار
کړی ۔ دوئ کښې د خودئې یعنے د ځان پیژندلو احساس را اولتیری
هر سړے بیا د دهٔ په تار غږیږی ۔ او د خپل زړهٔ او د خپل ذات
او نفس ساز باندے سر غورزوی۔ دا د غیر فانی او فن هنر کمال دے
په شاعرانو کښې دا حیات جاوید د ډیرو کمو نصیب

شوے دے۔ مولانا روم او علامه اقبال د هم دے قسم خودۍ یعنې ځان پیژندل، جهان پیژندل او بیا ئې د جهان خالق رازق او معبود حقیقی د راز نه خبریدل تعلیم ورکړے دے ۔ چه افراد ژوندی او فعال وی نو ملت هم ژوندے شی او چه مسلمان په حیثیت د ملت ژوندے شی نو بنی نوع انسان ګویا ځان او پیژندۀ او ژوندے شۀ، ځکه چه اسلام عالمګیر حق دے ۔ او د دے راوړونکے جناب محمد مصطفیٰ رحمة اللعٰلمین دے۔ رحمان هم د دے زسرے نه دے۔ د دۀ تعلیم د خودۍ د دۀ په ټول کلام کښے خور وورد ے۔ د دۀ د زمانے د تعلیم طریقه هم دغه وه۔ خوشحال خټک یو سیاسی او توررزن فنکار وو۔ رحمان یو صوفی ولی وو۔ بیدار استاذ وو۔ د دواړو مدعا دا وه چه د دوئ وګړے د د هر قسم مادی او روحانی انحطاط د زد نه بچ شی ۔ د دوئ خودی د قائمه او مستحکمه شی ۔ په پښتونخوا کښے دا احساس لا سم نۀ دے ژوندے شوے چه د دے قسم بزرګانو په کلام کښے یو پیغام وی ۔ دوئ د زړو حقائقو او اقدارو تجدید کوی ۔ ملت او ماحول د دوئ د روح افزا اثر لاندے نشاة ثانیه بیا موسی ۔ د علامه اقبال د مرد مومن تعریف هم په دے قبیلے خلقو صادق راځی۔ د داسے خلقو د نظر په برکت د قومونو تقدیرونه بدلیږی ـــ

پښتونخوا کښے د خوشحال د سیاسی نظریاتو نفوذ زیاتیږی ـــ

خو که پښتنو مفکرینو خالی د قومیت یا ملیت یا خیلیت نظریاتو پورے خپل فکر اوتړلو او د دے سره ئې د مذهب اسلام د روحانی او اخلاقی تعلیماتو تربیه ته توجه او نۀ کړه نو د وطنیت بت به د دوئ سره هغه کار اوکړی کومے چه د دنیا د نورو قومونو سره کیږی ۔ خوشحال رحمان د پښتونخوا د پاره یو حیثیت لری۔

د دواړو مطالعه په يو ځائے پکار دهـ په دواړو کښې د پښتون او مسلمان د مرض علاج پروت دے۔ ادبي مباحثے، ناقدانه مقالے يا دا قسم نور ادبي اصنافو ته توجه کول ـ او د دوئ اصلي تعليمات په دے تيل کښے د منځه ايستل نهٔ د پښتون په ديني يا دنيوی کار راتلے شي او نهٔ ترے څه علمي ښيګړه ولاړيدے شي ـ د قوميت او وطنيت دا خيال يو بت دے چه انجام کار اکثر توټے توټے شي د پښتون د "پښتو"، د فلسفے تقاضا دا ده چه د دهٔ ترون د څه خاص ډګر پورے نهٔ دے ـ د دهٔ توره عالمګيره ده ـ دے پښتون دے ځکه مسلمان ـ مسلمان او پښتون هم معنيٰ الفاظ دی پښتو د اسلام نوم دے خو په پښتو ژبه ـ چه پښتون وی ـ نو هغه به خواه مخواه مسلمان وی ـ پښتون بے د اسلام نه متصور نهٔ دے ـ پښتون هندو، پښتون عيسائی، پښتون بده وغيره وغيره هډو په خيال کښے نهٔ شي راتلے ـ ولے که پښتون داسے اوکړی نو هغهٔ کښے پښتو نشته پښتو دا ده چه تهٔ مسلمان ئے او مسلمانان به وے او چه مسلمان ئے نو بل څه نهٔ شے کيدے ـ نو د اسلام ناموس هم ستا په مړانه پورے دے۔ غرض مے دا دے چه د خوشحال او رحمان تعليمات يو هومره اهميت لری۔ د دوئ جذبات او مفکرانه کمالات دواړه زمونږ په ښه راتلے شي۔ او د پښتونخوا مشرانو او مفکرينو له پکار دی چه د دوئ دواړو د تعليماتو نشرو اشاعت د يو عالمګير او لوړے نظرئے ما تحت کوی د يو پښتونيت او د بل للّٰهيت دواړه زمونږ د رنځ دارو کيدے شي۔

سيد جمال الدين افغاني يو پښتون مفکر وو۔ د پښتون د فطرت اعلیٰ تربيت هم د دهٔ شخصيت کښے ليدے شي، يعنے د کل عالم د مسلمانانو په يو ځائے راغونډيدل هم د يو پښتون مفکر او فعاله نابغه په فکر کښے راتلے شو، او هم هغه د خپل پښتونولئے وصف په برکت توله دنيا اوخوزوله، پښتون که چرے حقيقتاً روغ شي يعنے د دهٔ نه هر غير اسلامی امراض لرے شي نو زما دا ايمان دے چه

د ټولے دنیا د پاره عموماً او د اسلامی دنیا د پاره خصوصاً د دهٔ وجود یو رحمت ګرځیدے شی۔ علامه اقبال (رح) دهٔ ته ځکه د ایشیا زړهٔ وئیلی دی، او پښتون ته ئے د ټولو نه لوئے کار حواله کړیدے، هغه وائی :

فطرت کے مقاصد کی کرتا ھے نگہبانی  یا بندۂ صحرائی یا مرد کوھستانی

یعنے د الله تعالیٰ د دین پالنه به یا عرب او یا د غرونو اوسیدونکے نر قوم پښتون کوی۔ که خدائے موقع راکړه نو زهٔ به د پښتو د فلسفے د عنوان لاندے څه اولیکمه، او خپله دا نظریه چه ما په مختصرو الفاظو کښے ذکر کړهٔ دا به په یو علمی انداز سره : پیش کولو کوشش او کړمه۔

زهٔ د خوشحال او د رحمان د فلسفے خیال داسے یوړمه چه په ځائے د ادبی جائزے یا تبصرے زهٔ به نورو کوڅو سر شومه۔ رحمان د صوفیانه شاعرئے هر وصف لری او د لا د پاسه دا وصف چه دے پښتون صوفی دے یعنے د دهٔ تصوف هم پښتون تصوف دے۔ دے مست دے، ملنګ دے، قلندر دے۔ ولے د ادب او تهذیب د حد نه هیچرے باهر ته نهٔ اوځی۔ د دهٔ پښتو د دهٔ په عالم مستئے کښے هم د دهٔ ملګرے وی۔ د خدائے پاک مینه د سړی نه هر څه هیر کړی ځان جهان هر څه هدو بیا د منځه اوځی او د همه اوست مرحلے ته چه صوفی اورسی نو دے ملنګ شی او رحمان په خپله وائی چه ع

" په ملنګ پاندے قلنګ او تاوان نشته "

ولے اوګورئ چه د دهٔ په دے دومره لوئے دیوان کښے چرته هم د دهٔ نه داسے الفاظ اوتی دی چه هغے کښے د شاعرانه یا صوفیانه یا ملنګانه یا قلندرانه بیباکی وی۔ د دهٔ د پښتو جذبه یعنے دا چه سړے بے وقره الفاظو وئیلو سپک شی۔ د سړی پښتو ته نقصان رسی ۔ دا د دهٔ

ختمه کښې پرته وه ـ د دے په بیخردئ کښې په خود وو ـ د وحدت‌الو
د فلسفے اعلیٰ تفسیر جوړ د پښتون په فطرت کښې موندے شي
حضرت مجدد الف ثاني فلسفۀ وحدت‌الوجود هم د پښتون د فطرت تو
وو ـ حضرت مجدد الف ثاني هم د دے قام دے ـ علامه اقبال د د
فلسفے قائله وو ـ او د دے ډیر وضاحت کړے دے ـ او ډاکټر برهان
احمد په دے یو مستقل کتاب لیکلے دے ـ

د رحمان د مطالعے په دوران کښې ما ته دا حقیقت ښکاره ش
که پښتانۀ مفکرین او ماهران تعلیم او سیاستدانان غواړي چه د دے قو
اوصافو، اخلاقو، صلاحیتونو او مټو نه دنیائے اسلام ته څه فائده اورسي
مناسب دي چه د دۀ د فطرت دا خصوصیت د یوے مستقلے فلسفے په ش
باهر ته را اوباسي ـ دا د کاوش او کنجکاوۍ میدان دے ـ او په ننني
کښې چه تر څو د یو قوم دایسے تربیت او نۀ شي چه هغه د خپل فطرت
آودو صلاحیتونو نه آګاه نۀ کړي او تر څو د هغۀ خودي په معقوله ط
هغۀ ته او نۀ ښوے نو تش جسماني زور کافي کار نۀ شي ورکولے ـ د پښ
او عرب فطرت کښې یوه (Objectivity) ده ـ یعنے دوئ په خوشي تصو
شي قانعه کیدے ـ دوئ د هر څیز مادي او عملي شکل غواړي ـ او دا
لندئ چه ع

په تصور مے څان بادشاه کړو   چه سر مے پورته کړو ملنګ د دونیړو

د پښتون د دے عملي فطرت د ترجمانئے د پاره کافي ده ـ
"دا ګز او دا میدان،، او "تش بوس بادول،، متلونه هم دغه ثابته وي ـ
صلاحیت د دوئ د تعلیم او تربیت په نظام کښې راوستل پکار دي ـ هم
دے صلاحیت عملي شکل د سائنس تلاش دے ـ په دے کوشه که
لاړ، نو دنیا به د وحدت‌الوجود او د خودئ د فلسفے اصلي مظهر اووینې

پښتون له خدائے دا جوهر ور کړے دے د دے نه کار اخستل د ټولے دنیا د مسلمانانو کار دے۔

یا خدایه بیا په کومه کوڅه ور سر شومه۔ نو وئیل مے دا چه د رحمان بابا د کلام خصوصیات د دهٔ د هم‌مشربو یعنے صوفیائے کرامو سره لګی۔ ولے د دهٔ ملی جوهر سره د دے هر څه نهٔ دے سړ۔ دهٔ د بادشاهانو د شان شوکت عروج او زوال، د رئیسانو خانانو ذکر ډیر کم کړے دے۔ او که کړے دے نوهم د هغوئ په اعمال او انجام ئے رائے زنی کړے ده۔ د هغهٔ نه چه کوم سبق حاصلیدے شی هغه ئے په آسانو الفاظو سره پیش کړے دے خو د چا د تعریفونو او قصیدو ساندے ئے نهٔ دی وئیلی۔ پښتون چه خپل اصلی ،بوهر قائم اوساتی نو که ملنګ وی او که بادشاه، د سرپتوب د مرتبے نه اوچت صرف لوئے حدائے ګنړی۔ انسان که هر څومره دنیاوی مرتبه لری د پښتون پښتو یعنے خودی دا نهٔ برداشت کوی چه زهٔ د هغهٔ تیے اووایم بیښکه د پیر فقیر او استاذ او د دینی مشرانو احترام لکه څنګه چه پښتون کوی دا سے بل څوک نهٔ شی کولے۔ زهٔ دا نهٔ وایمه چه پښتون د مشرئے کشرئے د اصولو نهٔ بے خبره دے۔ پښتون د مشر دا سے عزت کوی چه د هغهٔ په ځائے سر ور کوی۔ ولے پښتون خپل عزت او خود داری په هیڅ حالت نهٔ بائیلی۔ د پښتون ښو مشرانو تل د کشرانو د دے خصوصیت قدر کړیدے۔ او نن هم د پښتنو کشرانو مشرانو رشته په دے تار قائمه ده۔ خیر نو مطلب مے دا دے چه رحمان د چا خان رئیس یا بادشاه نواب قصیده خوانی نهٔ ده کړے، او په دے معنے سره دے د دنیا د ډیرو شعراؤ څخه لوړ دے۔ د دهٔ په کلام کښے دا هم نهٔ ده چه د چا پیر یا بابا کسر او وائی، دا د مجلسیانو شاعرانو کار دے۔

د اولس په معاملاتو کښے رحمان کمے ګوتے وهلے دی خو بیا هم د دهٔ په کلام کښے په اجتماعی آمورو ځائے په ځائے رائے زنی

شوے دے کہ څوک زلمے ادیب دا کړون اوکړي چه رحمان په مختلفو اوسی اېضاعو څه رائے لری، نو یو غټ کتاب به مرتب کړی۔ باقي د اخلاقیاتو او مذهبیاتو کومه خزانه چه د دهٔ کلام کښے پرته ده، د هغے د قدر و قیمت خو څه اندازه نشته۔ پښتونخوا کښے به داسے بندی کس پیدا نهٔ کړے چه د رحمان بابا د نوم نه خبر نهٔ وی که د ایلم په سوکه ناست وی او که د مهابڼ په بڼروئو کښے آوړی راوړی، پښتون به په خپله لنډۍ، ټپه او د رحمان بابا رباعي ضرور کوی۔ د بخارا سمرقند د دنګو غرونو، ژوړو تنګو او کړنګونو، او د لته بنډ او سپینے سوکے په پیچومی کښے د پښتون د زړهٔ آواز کړنګیږی۔ شپون او څاروان، غوبه او کګرے، هر کس و ناکس د ملی سندرے لنډۍ او د رحمان په رباعیاتو د خپل ساده ذوق تسکین راولی۔ د حسن و عشق د رشتے او د دغے له امله چه کوم واردات په انسان تیریږی رحمان دهغے په اظهار کښے د دے فن کامل استاد دے۔ او په دے کښے یا د اخلاسی اخلاقو د تعلیم او تربیت خزانه ورسره ورسره وی چه د هر چا حصه کښے رسی او د هر چا تسله پرے کیږی۔

د تمهید اهم مقصد خو د رحمان د ژوند او خصوصیاتو په حقله څه لږ معلومات راغونډول او مرتب کول وو۔ ما پکښے د ځینو داسے خبرو ذکر اوکړو چه ظاهرا بے محله ښکاری۔ خو د رحمان او د خوشحال تذکره چه د پښتو د شاعرۍ په سلسله کښے یو ځائے او نشي نو ئے د ادبي محاسنو، یا شاعرانه خصوصیاتو په تجزیه څه لوړ مقصد تر مخه نشي راتلے۔ مونږ لا د ادبي کمال هغه پوړۍ ته نهٔ یو ختلی چه ادیب یا فنکار محض فن د فن د پاره کنړی۔ دغه یو آزاد، بے فکره او په کور پوره ملت کولے شی۔ دغه دماغي عیاشي هر وخت کیدے نشی۔ پښتو ادب لا خړپوسے کوی۔ د پښتون په ادبي تاریخ کښے د دے دوارو مشرانو مفکرانو مقام

تش د یو شاعر نه دے۔ دوئ کښے هر یو، یو نوے خیال او نوے مکتب وضع کړیدے۔ د دغے نوی خیال په اهمیت ځان پوهه کول او بیا دغے له دایے شکل ورکول چه د یو ادب حصه اوګرځی د نننو ادیبانو کار دے۔ پښتو ادب به هله په خپلو پښو اودریږی چه ادیبان دے ته ملا اوتړی۔

شکر دے نن پښتونخوا کښے ډیر روښن دماغه، حساس او مړنی ادیبان او شاعران شته۔ دوئ د خوشحال او رحمان د شاعرئ نه ډیر څه اخذ کولے شی۔ بیشکه چه د نننو زلمو شاعری ډیره لوړه نه خو د دے زړو استاذانو په کلام کښے د شاعرئ د کم و بیش هر صنف نمونه موندے شی۔ د دغو تتبع څه لازمی نه دے، خو د دغو نه بالکل ځان نه خبرول او یا په خپل نوی علم و فضل ګواخ کول د علمی او ادبی ترقئ منافی خبره ده۔ زمونږ موجوده ضروریات زښت ډیر دی که فنکار انتخاب ؏وارږی نو ګران نه دے، ولے څنے مثائل دایے دی چه هغه خواه مخواه د هر فنکار توجه ځان ته راکښی۔ ما د ځینو ذکر اوکړو دا صرف یو اشاره ګنړل پکار دی ـ باقی میدان اوږد دے ـ

د څه مودے راسے زمونږ شعراء او ادباء د رحمان بابا د قبر په خوا کښے مشاعرے کوی ـ او هغه اونه هم وانی چه موجوده ده ـ نچزته چه رحمان بابا ناسته کوله ـ معلومیږی چه حس شته ـ د مشاعرو نه اوس یو قدم نیم مخکښے تلل پکار دی ـ الله تعالی مونږ د غیر د غلامئ نه خلاص کړو ـ مونږ له ئے یو آزاد او خپلواکه نظام راکړو ـ پاکستان یو نوے تصور دے ـ د دنیا په تاریخ کښے نظیر نه لری ـ پښتون د دے نوی اسلامی حکومت لاس پښے دے ـ خدائے د اوکړی چه د دهٔ صلاحیت د دے نوی ملک د پاره سر سترګے اوګرځوی ـ د پاڅسانی سر سترګے ګرځیدل ګویا که د دنیائے اسلام

سر ته رسیدلی دی ۔ پاکستان د اسلامی حکومت او نظریاتو تجدید د پښتو یو لوی مشر سید جمال الدین په یکی یوائیے سر توله دنیائے اسلام را پورته کوله ۔ د هغهٔ تحریک د اسلامی ملکونو نه تربګڼئی لرے کړے ۔ نن د ترکیه، ایران او عرب ټول د یو پښتون خادم د ذهنی او قلبی کاوشونو وجهه په دنیا کښے اوچتے سترګے ګرځی ۔ ولے دنیائے اسلام ته اوس د لوی نظر او نوی همت ضرورت دے ۔ او هغه صرف د پښتون د ملت لوربه ورتلے شی ۔ دا د بزرګانو خیال دے او زما دعا ده خدائے تعالیٰ نے قبوله کړی ۔

آمین یا مجیب السائلین

مولانا عبدالقادر

حال لاهور

۱۸ صفرالمظفر ۱۳۶۸ هجری۔
مطابق
۲۰ دسمبر ۱۹۴۸ عیسوی ۔

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

گوره هسے کردگار دے رب زما — چه صاحب د کل اختیار دے رب زما

همگی بزرگواران چه څوک ئے وائی — تر همهٔ بزرگوار دے رب زما

نۀ ئے هیڅ حاجت په چا بانډ موقوف دے — نۀ د هیچا منت‌بار دے رب زما

له نیستیٔ د هستیٔ صورت پیدا کړو — هسے رنګ پروردګار دے رب زما

هم صانع دے د جملهٔ مصنوعاتو — هم سامع د هر ګفتار دے رب زما

چه ئے هیچرے نۀ مثل نۀ مثال شته — د هغو عطرو عطار دے رب زما

هر تعمیر چه د دنیا او د عقبیٰ دے — د همه وارو معمار دے رب زما

خوانندہ د نانویسو صحیفو دے — دانندہ د هر اسرار دے رب زما

که ظاهر دے که باطن دے که مابین دے — له همهٔ خبردار دے رب زما

که پیدا که پوشیده دے که اوسط دے — په همهٔ وقوف‌دار دے رب زما

شریک نۀ لری په خپلے بادشاهئ کښے — بے شریکه شهریار دے رب زما

هسے نه چه واحدی ئے ده له عجزه — په واحد وجود بسیار دے رب زما

حاجت نۀ لری د هیچا و یاریٔ ته — له هغو سره چه یار دے رب زما

څۀ حاجت دے چه و بل خواته ئے غوارم — په خپل کور کښے همکنار دے رب زما

هیڅ تغیر او تبدیل نۀ لری رحمانه
تل تر [illegible] برقرار دے [illegible] زما



که صورت د محمد نه وے پیدا
پیدا کړے به خدائے نه وه دا دنیا

کل جهان د محمد په روئ پیدا شو
محمد دے د تمام جهان آبا

نبوت په محمد باندے تمام شو
نشته پس له محمده انبیاء

نور هاله د محمد وو پیدا شوے
چه بوئی نه وو د آدم او د حوا

که صورت ئے پیدا شوے آخرین دے
په معنیٰ کښے اولین دے تر هر چا

خدائے ئے مه ګڼړه بیشکه چه بنده دے
نور ئے کل واړه صفات دی په رښتیا

که نبی دے که ولی دے که عاصی دے
محمد دے د همه وارو پیشوا

چه ئے دین د محمد دے قبول کړے
جنتی دے، که فاسق دے که پارسا

محمد د ګمراهانو رهنمائے دے
محمد دے د ړندو د لاس عصا

که رڼرا ده پیروی د محمد ده
ګڼړه نشته په جهان بله رڼرا

محمد د بےچاره ؤ چاره‌ګر دے
محمد دے هر دردمند لره دوا

زهٔ رحمٰن د محمد د در خاکروب یم!
که مے نهٔ که خدائے له دے دړه جدا

* ۲ * ۲ *

هوښیار مه ګڼړه هوښیار د دے دنیا
بےوقوف دے وقوفدار د دے دنیا

روښنائی په هغو زړونو ده حرامه
چه پرے کښینی ګرد غبار د دے دنیا

پوچ ګوئی ده چه ئے اهل د دنیا کاندی
هر کلام او هر ګفتار د دے دنیا

د طفلانو په شیر واړه خاکبازی کا
هر چه کاندی کاروبار د دے دنیا

واړه ډکے خولے د پیو هلکان دی
کار دیده او پخته کار د دے دنیا

همیشه به بےوقوف او بےشعور وی
چه مخمور وی په خمار د دے دنیا

د شرابو هم لا هومره مستي نۀ وي
لکه مست وي خمر خوار د دے دنیا
هر بیمار لره دارو په جهان شته دے
دارو نۀ لري بیمار د دے دنیا
د هر سوي علاج اوښي په جهان کښے
مګر سوے په شرار د دے دنیا
هر چه واچوي و آورته واره سوزي
موړ به نۀ شي طلبګار د دے دنیا
ګرفتار ئے همیشه په غم کښے ډوب وي
هیڅوک مۀ شه ګرفتار د دے دنیا
تل بۀ پروت وي په ظلمت او په تورتم کښے
چه اسیر وي په کفار د دے دنیا
څه و بت وته سجده څه و دنیا ته
بت پرست دے پرستار د دے دنیا
په مسلمو کښے خاصه مسلم هغه دے
چه ئے اوشلاوه زنار د دے دنیا
تن ئے پاتے شي بے سره، سر ئے لاړ شي
سردار کله دے سردار د دے دنیا
زامن لونړه یتیمان که څنے دروسي
بے ونا دي مور و پلار د دے دنیا
همیشه به ئے بو پنډ د غم په سر وي
چه په سر ئے وي دستار د دے دنیا
واړه غم دے که ئے پیرے که ئے پلورے
نور څه نشته په بازار د دے دنیا
همه واړه ئے تګان دي تکي کاندي
فروشنده او خریدار د دے دنیا

په دنیا به مینه نه ګاندی هیچرے
چه خبر وی په اضرار د دے دنیا
چه نظر د چا په دین او په ایمان وی
هغه نهٔ کا انتظار د دے دنیا
لوڼے، هلک ئے همه واړه اغیاران دی
یار دے چرے په دیار د دے دنیا
چه پیدا شی همګی واړه فنا شی
راشه اوګوره ناتار د دے دنیا
چه ویریږی له کوهی او له ګړنګه
هغه نهٔ دروسی په لار د دے دنیا
اشنایان ئے همه واړه مکاران دی
څه ویسا ده په مکار د دے دنیا
هر سړی لره چه ورشی ځنی دروسی
ما لیدلے دے رفتار د دے دنیا
په یوه ګړئ بهار وی بیا خزان شی
بقا نهٔ اری بهار د دے دنیا
که هزار هزار وشتی ورته تهٔ کیږدے
بے بنیاده دے دیوار د دے دنیا
که د اوسپنو حصار تر ځان چاپیر کړے
بنیبنه اوګنړه دیوار د دے دنیا
لکه سورے د آفتاب په ځنګنبے ګرځی
نشته هیچرے قرار د دے دنیا
هیڅ ګمان د بهترئ ورباندے مکړه
کهتری ده په وار د دے دنیا
بے مقرانبه غوسه وی د سړی عمر
هم دا لیل او هم نهار د دے دنیا

پس له مرګه بهٔ حساب له سرې غوښت شي
په انداز او په مقدار د دے دنیا
عاقبت خو بهٔ یو موټے شي د خاورو
ګلعذار و ګل رخسار د دے دنیا
برابر به له ګدا یه سره پاسي
شهـزاده او شهریار د دے دنیا
پاس به داغ وي د لئیم په سینه باندے
هر درهم او هر دینار د دے دنیا
پس له مرګه بهٔ همه واړه مظلوم وي
ظالمان او ستمګار د دے دنیا
تر قیامته دغه لس او دغه شل دي
پوره نهٔ کړو هیچا شمار د دے دنیا
چه ایام پرے د کفن او غسل ورشي
بے پرده شي پرده دار د دے دنیا
په تخته باندے بیرون شي له حجابه
شرمناک او شرمسار د دے دنیا
تر هر چا به پیغمبر څخه وه ډیره
که څه قرب وے با وقار د دے دنیا
یو فساد به ئے بیان له رحمٰن نهٔ شي
فسادونه دي بسیار د دے دنیا

* ۳ * ۳ *

هغو بیاموند سعادت په دا دنیا
چه ئے اوکړو قناعت په دا دنیا

نهٔ ملکونه د سلیمان په هزار کاله
نهٔ یوه ګړئ طاعت په دا دنیا

یو نفس د خدائے په یادو اولی تر دے
نهٔ د درست جهان دولت په دا دنیا

په دنیا کښې لوټ هغو عالمو اوکړو
چه ئے اوکړو عبادت په دا دنیا

که نعمت دے خو طاعت او عبادت دے
ګنړه نشته بل نعمت په دا دنیا

که محنت او مشقت دے خو د دین دے
پکار نهٔ دے بل محنت په دا دنیا

ے له خدایه هر چه دی همه فانی دی
که لذت دے که زینت په دا دنیا

که بادشاه دے آخر خاورو لړه دروسی
څه عزت دے څه حرمت په دا دنیا

تر هغه به بل نادان په جهان نهٔ وی
هر چه غواړی فراغت په دا دنیا

تهٔ چه څو وخته فرصت په دنیا غواړے
چا موندلے دے فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریګه به روان کاندی
هر چه کاندی عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزشه څه کم نهٔ دے
د سړی استقامت په دا دنیا

هر ژوندے چه د مړده په قبر ورشی
بس دے هومره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو راشه عمر کوره
ډیر دے هومره اشارت په دا دنیا

دا پاخهٔ پاخهٔ سرایونه محلونه
خو به وران شی عاقبت په دا دنیا

وړے ستر ګې د اسمان څه هسے نهٔ دی
که څوک پریږدی سلامت په دا دنیا

هر چه راشی همه واړه ځنې دروسی
مسافر دے هر صورت په دا دنیا

ریاضت به قیامت نهٔ شی، مرد هغه دے
چه ئے اوکړو ریاضت په دا دنیا

هم په دا خوئی و خصلت به صبا پاسی
مکړه خدائے څوک بدخصلت په دا دنیا

هم هغه به ئے خرمن وی پس له مرګه
هر چه کاندی زراعت په دا دنیا

که هغه جهان په دا کښې لیدے نهٔ شی
زهٔ ئے وینم علامت په دا دنیا

په قیامت کښې به توبه څه بله نشی
ما لیدلے دے قیامت په دا دنیا

امانت به د لحد په میان کښې پروت وی
هر چه اوسی امانت په دا دنیا

نیک عمل حضور جنت دے طاعت بویه
چه حاصل که څوک جنت په دا دنیا

نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه
هم جنت دے هم راحت په دا دنیا

ضدیت د سړی عمر په عذاب کا | پکار نهٔ دے ضدیت په دا دنیا
لاس په سر په سینه اینبی و هر چاته | هم دغه دے شرافت په دا دنیا
که بلنده مرتبه د چا پکار وی | لوړ مقام دے عدالت په دا دنیا
بل ارمان به له جهانه پوره نهٔ شی | مگر مهر و محبت په دا دنیا
د هغې جهان سودا واړه دلے شی | که څوک کاندی تجارت په دا دنیا
که طالع د سړی نهٔ وی جاروتلے | هیڅ پټ نهٔ دے حقیقت په دا دنیا
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو | که څوک غواړی ولایت په دا دنیا
ولایت دے خدائے هغو لره ورکړے | چه ئے ورک کړو سکونت په دا دنیا
که ګمانه دنیا واړه سره یو شی! | نور به نهٔ کا خپل قسمت په دا دنیا
که څوک سر د دنے خو هغهٔ دے په دنیا کښے | هر چه نهٔ لری حاجت په دا دنیا
چه رغبت ئے د جمله و خطاء سر دے | څوک به څه کاندے رغبت په دا دنیا

په رحمان باندے دا عمر هسے تیرشو
لکه تیرشی یو ساعت په دا دنیا

* ۴ * ۴ *

ښهٔ ده ښهٔ ده دا دنیا | چه توښه ده د عقبا
مذمت د دنیا مه کړه | واوره پند کا دا وینا
د دنیا په بازار کیږی | د هغهٔ جهان سودا!!
په دنیا کښے ډیر حکمت دے | ورشه وپوښته حکما
که تر سر ئے صدقه کړے | رفع دفع کړهٔ بلا
که غلیم لره ئے ورکړے | غلیم دوست کا په هوا
که په اور باندے ئے کیږدے | بوئی د عودو کا پیدا
که ئے توبه په صحرا کړے | ښائسته کاندی صحرا
که ئے نذر کړے و پیر ته | خوشحال دروسی په خندا
څو ژوندے ئے په جهان کښے | یاده وی دے په دعا
د حاتم په څیر د ستائی | خطاب ورکا د سخا
سخی هر بود خدائے دوست دے | و لو کانَ فاسقاً

هر بخیل د خدائے دښمن دے ... و لو کانَ زا هداً
دنیا کښت د آخرت دے ... دا خبره ده ربتیـا
د دنیا طالبان ډېر دی ... که ئے مومی څوک له چا
ولے مرد په کښې هغه دے ... چه سخی وی هم پارسا
په دنیا کښې بدی نشته ... که بدی نهٔ وی له تا
دنیا بحر دے بېړی ... آئینے غوندے صفـا
خپل خپل مخ پکښې لیدهٔ شی ... که څوک زشت وی که زیبا
هم خطر پکښې د سر شته ... هم گوهر دے بے بها
وفادار لره وفا شـوه ... جفـاکار لـره جفـا
له یوهٔ څه ئے درد وی ... له بل څه ئے دوا
چرته خوند کاندِ د زهرو ... چرته خوند کړی د حلوا
کار همه واړه موقوف دے ... د سړی په مدعا
سالکان دِ تنداریچی شی ... د خپل ځان په تماشا
هر چه کا، هغه به مومی ... دنیا ځائے دے د جزا
لکه دنے، هسے به پاے ... که نادان وی که دانا
که دانا ئے وپوهیږه ... په روا په نا روا
فتوىٰ ونیسه په مخ کښے ... پسے مت کړه په تقوىٰ
دنیا نه ده هغه دین دے ... چه له نهی وی سوا
او طاعت وته ولاړ وی ... همیشـه تړلے مـلا
له حرامو ئے پرهیز وی ... هم مشغول په پنج بنا
کلمـه ئے وی په ژبه ... هم په جهر هم خفا
د دنیا د کار د پاره ... فرض لمونځ نهٔ کاندِ قضا
هم صائم وی د رمضان ... هم ذکواۃ کاندی ادا
که ئے توان د حج رسیږی ... حج هم اوکا پسے بیا
دا پنځه بنا د دین دی ... چه بیان ئے اوکړو ما
چه ئے یون په دا طریق وی ... هغه کس دے اولیا

که یې مال او دنیا ډیر وی ... هیڅ دې نه کاندے پروا
دنیا بده د هغو ده ... چه یې کسب وی ریا
یا یې کسب د ریا وی ... یا یې اوکتی په غلا
یا یې تول کا په ظلم ... یا د خمرو په سودا
یا یې ورکا په شرابو ... یا یې ورکا په زنـا
یا ناحق خونونه کاندے ... یا مالونه خوری د چا
عبادت کا په ځان فرض ... د بادشـاه د آمراء
حق باطل کا، باطل حق کا ... په سبب د روئ ریا
نه یې ویره وی له خدایه ... نه یې شرم نه حیـا
د بوے گیدړے د پاره ... هزار ځونے کا پیدا
همیشه یې له ستمه ... وارهٔ خلق وی په غوغا
کوش او هوش یې مرکز نه وی ... د مظلومو په ژړا!
فرعون په څیر به ناست وی ... بے پروا او کبریا
بت خانے وته یې مخ وی ... و مسجد وته یې شا
اختلاط کا له بدانو ... لـه نیکانو وی جـدا
هیڅ یې نه وی په خاطر کښے ... تـؤلا او تمـنا
ما رحمٰن ته پېښه مه کړے
خدایـه هسے رنګ بـلا

*۵*۵*

[illegible] مه کوه له چا سره جفا ... لږ ژوندون دے ضائع کیږی بیوفا
[illegible] هغو ک نه دی پاے شوی ... وارهٔ تلونی دی که نن دی که صبا
[illegible] چه نن وتا وته جلوه کا ... په دوه ورځے پس به وارهٔ شی فنا
[illegible] بد د دوی خوبن وی ورته ګوره ... چه فنا شی بیا به کله شی پیدا
[illegible] چه بیلے شی له ښاخه ... په حکمت به یې پیوند نهٔ کا حکما
[illegible] امکه ځانګے پربوزی له آسمانه ... بیا له زمکے ختے نهٔ شی په سما

ګمان مه کړه چه به سترګو لره ورشی    هغه اوښکې چه له سترګو شی جدا
دا په هره ورځ چه خیژی ییل ییل ګردے    هر چه پریوزی هغه نهٔ شی ختے بیا
که جنت په زهد نهٔ دے بے له فضله    هر سړے دِ خپله غاړه کا ادا
که د نفس د پاره سل محنته او کړے    یو محنت به دِ ښکار نهٔ شی فردا
که تمام جهان په خپله کیله اوخورے    یاد به نهٔ شے په درود او په دعا
که یوه دانه د اوړی په لاس ور کړے    هم دغه به دِ توښه شی د عقبا
که یو څاڅکے اوبهٔ تږی لره ور کړے    د دوزخ او ستا تر منځ به شی دریا
که یوځله سر د خدائے په لورے ټیټ کړے    په قیامت به سربلند شے تر هر چا
بازار دا دے که څوک سودا وسودا کاندی    په هغه جهان نهٔ سود شته نهٔ سودا
آشنایان که څه پوهیږی دائے وخت دے    چه زاریږی یو آشنا تر بل آشنا
که ژوندون دے خو هم دا دے په جهان کښے    چه له چا سره تیریږی په خندا
خدائے امان را کړے له هسے زندګئی    چه تهٔ بد وائے له بله، بل له تا
زهر ښهٔ وی که په صلح په صلاح وی    نهٔ شکرے په فتنه او په غوغا
نفس په خاورو په خس د کښهٔ دے یغمه    نهٔ د غم په خار و خس پخه حلوا
په محنت په مشقت ملا ماته ښهٔ ده    نهٔ حرامه همیانئ د چا تر ملا
ړوند بهتر دے چه څه نهٔ وینی په سترګو    نهٔ چه سترګے په پردی حرام که وا
ګونګے ښهٔ دے چه بے کام و بے زبان وی    نهٔ چه ژبه شی په بد وئیل ګویا
کوڼ بهتر دے چه څه نهٔ آوری په غوږو    نهٔ چه غوږ کاندی په بد وئیل شنوا
دیو او دد که ښخوا درشی خو بهتر دے    خدائے دِ بد سړے در نهٔ ولی ښخوا
د جاهل د همدمئ نه به بهتر وی    که به چا سره همدم وی اژدها
که مشکل دی خو د زړونو رغول دی    سهل کار دے سود او زیان د دے دنیا
سود او زیان د دنیا واړه سهل کار دے    خدائے دِ نهٔ کا څوک په سهل کار رسوا
چه د رور او د عزیز پرے زړهٔ آزارشی    حاصل مه شه هغه خپله مدعا
ګاه د نورو رضا بویه ګاهے خپله    ښکار نهٔ ده همیشه خپله رضا
ښهٔ خوارهٔ چه یوئے خوری بل ورته ګوری    خوارهٔ نهٔ دی هغه زهر دی ګویا
چه ښادی ئے یو زمان وی غم تر تله    دغه هسے چارے نهٔ کاندی دانا

لکه ځان هسې وبل وته نظر کړه
لکه ستا دے، هسې ځان دے د هر چا

منصفانو لره بویه چه انصاف کا
نۀ چه نفرته کړی د حرص او د هوا

د سړی په خاطر هر څه هر څه ګرځی
هسې نه چه واړه او ګڼړی روا

دین داران دِ و خپل دین وته نظر کا
څوک فکرونه د ثواب کا څوک خطا

خدائے دِ نۀ کاندی خطا د چا د نسه
څه نسبت دے د خطا او د عطا

هسے نه چه سړی واړه سره سم دی
څوک اعلیٰ دی څوک اوسط دی څوک ادنیٰ

د هر چا حرمت په خپله اندازه دے
نه چه موسیٰ نفر ځائے د آمراء

زۀ رحمان له چا شکوه شکایت نۀ کړم
نشته بل دوست او دشمن زما، بے تا

* ۲ * ۲ *

چه له تا سره په سر کاندی سودا
بل په نۀ وی هسے ما غوندے شیدا

نۀ به ما غوندے شیدا وی په جهان کښے
نۀ به تا غوندے دلبر شی راپیدا

ما دا ستا جور و جفا دی قبول کړی
ولے نۀ شی د زړا په ځائے خندا

بے د ستا د مخه، کوم دے که مکان دے
نه توبته سے نۀ به دے شی نۀ به دا

جدائی به دِ هیڅ رنګ قبوله نۀ کړم
څو مے نۀ دے روح کالبوت سره جدا

لکه ورستو مقتدیان، وړاندے امام وی
هسے ما تا پسے کړی اقتدا

زۀ بو نه یم درست جهان په تا مین دے
که بادشاه دے د دے دهر، که ګدا

کاشکے خط د امانی و ماله راکړے

چه له ما سره وعده کړے د فردا
زۀ به خپله به تا نۀ یم مېشن شوے
ستا له لورے په ما شوے ده ندا
زۀ به تا باندے مېئن یم له ازله
نۀ چه کړے مے نن ورځ ده ابتدا
چه دا ستا د عاشقئ په تیغ شهید شی
د رحمان غاړه به هاله شی ادا
د رحمٰن و زیری رنګ وته نظر کړه
چه مدام به تا پسے کاندی ژړا
* * *

که مېئن نے په خپل یار باندے رښتیا
آواره کړه اول دین، پسے دنیا
په وفا د دلبرانو غلط مه شه
دغه قوم دے بیوفا او کبریا
د خوبانو طائفه ده هسے شوخه
چه غوږ نۀ باسی د چا په واویلا
د ډېر ناز او د ډېر کبر له سببه
عمل نۀ کا په ګفتار د اولیا
دل و دین په یو نګاه د سری یوسی
نۀ ئے ویره له چا کیږی نه حیا
بل به هسے سرګردان په جهان نه وی
یا عاشق دے یا آسمان دے یا آسیا
نۀ چه ژغوری سر و مال په عاشقئ کښے
عاشقی ... چرے ده ویړیا
د جنت له حورو تیر شه که یار غواړے

خدائے دِ نقد د چا نهٔ کاندی نسیا
د ساقی له لاسه هسے باده نوش کړه
چه دِ غوږ کا له زړهٔ خپرے د ریا
چه ئے کسب عاشقی شوه د دلبرو
نظر نهٔ کاندی په کسب د کیمیا
یو گفتار ورلره بس کاندے رحمانه
څه به هر ساعت پوښتنه کړے بیا بیا
* ۸ * ۸ *

که څوک یار په جهان غواړی یار دے دا
یار دے دا که د جهان سنګار دے دا
خیال د زلفو ئے زما تر زړهٔ چاپیر شهٔ
یا تر گنجه چاپیر شوے مار دے دا
دا جهان دے خدائے له عشقه پیدا کړے
د جمله وُ مخلوقاتو پلار دے دا
تر عشق غوره بل هیڅ کار په جهان نشته
تر همه کارونو غوره کار دے دا
بو بلبل په د گل نوم اخستے نهٔ وو
که خبر وے چه گل نهٔ دے، خار دے دا
بیا واتلهٔ دِ دے جهان ته بل وار نشته
بل وار نشته، بل وار نشته، وار دے دا
د حباب عمر ته وګوره چه څه دے
که څوک شمار کاندی د عمر، شمار دے دا
د مجنون صورت په زړهٔ کړه رحمٰن گوره
ستا په عشق کښے هسے خوار و زار دے دا
* ۹ * ۹ *

عاشقئے مے پہ زړهٔ اوکړلو ګذر بیا
بیلتانهٔ مے لمبے بلے کړے په سر بیا

که دفتر د خپل قسمت مے په خپل لاس وے
ما به ستا له غمه وران کړهٔ دا دفتر بیا!

ما لا نوم د عاشقئے اخستے نهٔ وو
جدائی دِ راته جمع کړهٔ لښکر بیا

پس له مرګه به ئے بیا له تا قربان کړم
که صورت مے خدائے پیدا کړو په محشر بیا

د هجران محنت مے واړه له زړهٔ هیر شو
چه مے ولیدهٔ په سترګو ستا بشر بیا

چه آسمان ئے مخ پټ کړے په سحاب وو
خدائے وہا وته مرګند کړهٔ هغه نمر بیا

چه رقیب راته تړلے په زنځیر وو
خپل حبیب را باندے پرانست هغه در بیا

په یوهٔ نظر ئے زړهٔ راښخه یوړو
خدائے دِ خیر کا چه لا بل و کړے نظر بیا

په وصال ئے منت بار اوسه رحمانه
په صدف کښې دخل نهٔ وی د ګوهر بیا

*۱۰*۱۰*

دل و دین مے کړهٔ په هغهٔ ترک فدا
لا ئے نهٔ حسابه وی د ځان بها

د ښائیست صفت ئے څو کوم حیران یم
چه هیڅ رنګ ئے مونده نهٔ شی انتها!

د صورت له عیبه هسے پاکیزه دے
لکه ذات د ویښتهٔ نشته دے په ها!

که ئے مخ په زلفو پټ وی باک ئے نشته
تل په ګنج باندے پرته وی اژدها

لکه نمر هسے جلوه کا په شفق کښې
چه په سر باندے اوډنړیٔ کا د سها

نهٔ پوهیږم چه په کومه لاره دروسم
چپ و راست مے رقیبان دی هزارها

خدائے دِ هسے تنها نهٔ که څوک په غم کښې
لکه زهٔ د یار په غم کښې یم تنها

همیشه د بیاتـانه په غمه لولم
زهٔ رحمٰن، نعـوذ بالله منهـا

۱۱ * ۱۱

ډیره شوه په یار پسے ژړا زما
نه گروهیږی په ژړا آشنـا زما
که ہے هره وینا، دُر شی یا گوهر شی
ستا د غوږ نه دہ لائق وینا زما
په نارو به ما بیدار کړهٔ که اودهٔ وے
راته وینی اودهٔ شو دلربا زما
زهٔ مکتوب غوندے په پټه خُله گویا یم
لاندے کړله خاموشیٔ غوغا زمـا
کښت د عشق په توده زړکه آسان نهٔ دے
سمندر بویه په دے صحرا زما
دا یار نهٔ دے چه هجران زما نه بیل کړو
دغه روح له تنه شو جدا زما
زهٔ رحمٰن بے خپله یاره هیڅ نهٔ غواړم
که قبوله خدائے ته وی دعـا زما!!

۱۲ * ۱۲

عالمان دی روښنائی د دے دنیا
عالمان دی د تمام جهان پیشوا
که شه ک لارغواړی و خدائے و رسول ته
عالمان دی د دے لارے رهنما
کیمیاگر د کیمیا په طلب گرځی
همدمی د عالمانو ده کیمیـا
په مجلس د عالمانو به سرهٔ زر شی
که خوک کانړے وی که بوټے د صحرا
جاهلان دی په مثال د مردگانو
عالمان دی په مثال د مسیحا

چه مرده ئې له نفسه ژوندی کیږی عالمان دی واړه هسې اولیا
هر سړے چه رتبه نهٔ لری د علم سړے نهٔ دے خالی نقش دے ګویا
زهٔ رحمٰن حلقه بګوش د هر عالم یم
که اعلیٰ دے که اوسط دے که ادنیٰ

* ۱۳ * ۱۳ *

چه واده کړی په ډولِ او په سُرنا
بیا ړوړے واخلی زمانه د ویر وینا
که مے هر څو دلبری او دلجوئی کا
زهٔ پوهیږم د خپل یار په استغنا
په یوه ګړئ مے یار هم مے آشنا شی
بیا مے بله ګړئ نهٔ ګنړی آشنا
دا زهٔ خپله تسلی کړم یار ئې بولم
څه یاری دہ د ناتوان او د توانا
یو زمان او یو دم، بے له خپل صنمه !
زهٔ بهتره تر بقا ګنړم فنا
هر سړے په یوه چاره خدائے مشغول کړو
زهٔ مشغول کړم خدائے د ترکو په ثنا
ما بے عشقه بل هنر نهٔ زده ناصحه
بخشنده شه که نادان یم که دانا
چه مے غوږ په نارو نهٔ باسی حیران یم
پرواه نهٔ لری واړهٔ دی له ګبر نا
بے د یار د څهٔ دیدن نه د خدائے نهٔ کړه
د رحمٰن په زړهٔ کښے بله تمنا

* ۱۴ * ۱۴ *

کړ خپل زړهٔ غواړے له چا
ځان صیاد کړه د عنقا
د حباب کلاه په سر کړه
سور په آس شه د هوا
لکه خضر (ع) هسے پاسه
اوبه وڅښه د بقا
له زمینه قدم کیږده
په آسمان لکه عیسیٰ (ع)
دا چه ما درته بیان کړهٔ
که حاصل کړے واړه دا
هالهٔ طمعه کړه رحمانه
له خوبانو د وفا

* ۱۵ * ۱۵ *

په بنادۍ بناد شوے نهٔ یم د هیچا
تور تپ سوے یم په غم د هر آشنا
که زړهٔ طمع توقع د بله نهٔ کړم
د بل طمعه توقع کړی له ما
که مے رور، که مے عزیز که مے فرزند دے
واړه غواړی خپله خپله مدعا
په هر کور کښیے رنځوران راته پراتهٔ دی
لاس مے نهٔ رسی د هیچا په دوا
د دنیا خبرے واړه په دنیا شی ا
ما په څه کا څوک، چه نهٔ لرم دنیا

که په کلی کښیے ے کور دے زۀ کمان کړم
چه کور نۀ دے دا مے کور دے په صحرا
سچه پرے نۀ وی څه پوره او نۀ نیمګړی
څوک به څه کا له هغو سره خندا
سچه ئے ښه توبه و بله سره نۀ شی
تر هغه آشنا بهتر دے نا آشنا
په توده زړکه استوړنه ده مشکله
څه به زیست شی له رحمان سره د چا

* ۱٦ * ۱٦ *

دا دنیا ده بے وفا بے وفا ده بے بقا !
نۀ ئے مخ شته نۀ ئے څټ شته لکه لوټه د صحرا !
په یوه ګړئ ئے مخ وی په یوه ګړئ ئے شا !
په یوه ګړئ دِ ستا وی په یوه ګړئ زما !
په یوه ګړئ ئے درد وی په یوه ګړئ دوا !
په یوه ګړئ ئے خوف وی په یوه ګړئ رجا
په ساعت کښیے ئے بقا وی په ساعت کښیے ئے فنا
په ساعت کښیے ئے سکوت وی په ساعت کښیے ئے غوغا
په ساعت کښیے ئے خندا وی په ساعت کښیے ئے ژړا
په ساعت کښیے ئے وفا وی په ساعت کښیے ئے جفا
په ساعت کښیے ئے افلاس وی په ساعت کښیے ئے غنا
چه نۀ شان لری نۀ شکل کله دا شی کله دا !

خدائے څوک ہیش مکړه رحمانه
په دا هسے رنګ بلا !

* ۱۷ * ۱۷ *

ستا په څیر نۀ دی خوبان لیدلی ما نۀ په غوږو چرے آوریدلی ما

هيڅ وفا له عاشقانو سره نهٔ کړي   دلبران دي واړه ازمائيلي ما
چه يې ستا دے ښکلي مخ ته دي کتلي   بل يو مخ ته نهٔ دي بيا کتلي ما
د زړهٔ غولے مے نيولے ستا غمونو   نور غمونه دي د زړهٔ ويستلي ما
چه مے کار د عاشقئ په لاس کښيے واخست   ټپي له بله کاره لاس اوکښلي ما
نور غمونه مے له زړهٔ نه دي وتلي   ستا غمونه دي پکښيے کرلي ما

زهٔ رحمٰن بے ياره خوب و خندا نهٔ کړم
بے دهٔ، نهٔ ده خوب خندا پسندلي ما

* ۱۸ * ۱۸ *

---

چه نظر کرم په قسمت او په نصيب   راته هيڅ شي خپل تالاش او خپل ترتيب
مگر خود په خپله خدائے د چا طبيب شي   گنړهٔ نشته په جهان کښيے بل طبيب
[illegible] سرگند ذے سود و زيان د رقيبانو   که خدائے نهٔ کاندي خپل يار د چا طبيب
چه خپل يار د چا رقيب شي دليل دادے   لکه څوک چه په وطن کښيے شي غريب
چه غريب شي په وطن کښيے فرق نهٔ وي   که فرسنگ ئے وي تر ميانه که جريب
[illegible] په عشق کښيے هيڅ حاصل نهٔ کړهٔ بے غمه   هر چه وائي هغه ښهٔ وائي اديب

دشمن هم د سړي کله کله دوست شي!
دوستي نهٔ کړه له رحمٰن سره حبيب

* ۱ * ۱۹ *

[illegible] مست يمه د شونډو په شراب   چه به نهٔ وي بل دا هسے مست خراب
[illegible]س د ستا په مينه اچوم و گل ته   لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
[illegible] سرخي او سفيدي د ستا د مخ ده   که زما په مخ باران دے د خوناب
[illegible] اثر به زما اوښکے په تا کاندي   لا تازه شي اور په اوښکو د کباب
[illegible]ادتان دِ ستر گے رونړے کا په عشق کښيے   دا خواب نهٔ دے دا منزل ذے د سيلاب

ما چه خال دا ستا د وروځو په میان ولید — نهٔ بل هسې رنګ امام شته د محراب
ښاپیری چه لیدے نهٔ شی سبب دا دے — مخ د ستا له شرمه نغاړی په حجاب
چه صبا شی ستا ترمخ پورے شرمیږی — ځکه زیست په توره شپه کاندی مهتاب
حجاب واخله مخ کړه تور د هغه خلقو — چه تحسین کا ستا په دور کښې د آفتاب
هسې نه چه زهٔ دلبر وایم و تا ته — خدائے دے تا لره درکړے دا خطاب
ستا د مخ په ورق باندِ خط و خال دے — د مصحف په صحیفو باندے اعراب
ستا د حسن حساب هیڅ راځخه نهٔ شی — هم په دا چه بیحساب دے بیحساب

یو کتاب په سربن کښې چا اونهٔ کړو
بے رحمانه، چه ئے جوړ کړو دا کتاب

* ۲ * ۲۰ *

چه ئے ولید دا ستا حسن بے حساب — له دے قصده تاؤ پیدا شو له آفتاب
په آرزو مے د نرګس سترګے ځلور شوے — غنچه سره د زړهٔ په وینو شوه غرقاب
ستا په غم مِ سترغلی سرے سرے ناغرے شوے — یا خیمے دی سیه پوشه سرهٔ طناب
که دِ زلفے په مخ پیچ و تاب شوے ښائی — وینبته څه طاقت لری د اور له تاب
زهٔ چه خدائے د ستا له غم سره آشنا کړم — خوشحالی مے نور نایابه شوه نایاب
سترغلی مے د فراق په ژړا سرهٔ شو — د سبزی اثر ئے پاسیدو له آب
مه، خورشید چه دِ ښائست پورے شرمیږی — ځکه مخ پناه کوی تر کوه قاب
زهٔ دِ پیژنم په اصل کښې خاکی ئے — ځان به څو ځندے په ګوته له تراب
څو دِ خیال د آشنا ګرځی په لیمهٔ کښې — خبر زده کړه تهٔ د اوښکو له سیلاب

د رحمٰن بخت به هالهٔ، له خوبه ویښ شی
که تهٔ سترګے ورته پورته کړے له خواب

* ۳ * ۲۱ *

ورتونه لتوم د هر مکتوب — پکښې غوارم خال و خط د خپل محبوب
یا تنور دے یا دوکان د آهنګرو — چه په عشق کښې تصور کړم خپل قلوب

ب

په خندا خندا ځان آچوي بل اور ته
خدائے چه څوک کړي پجذبه دعشق مجذوب

زۀ چه غم د مهرويانو را په زړۀ کړم
له دے غمه لاړ شي زړۀ راڅخه ډوب

کوره عشق څرنگ اسان کړۀ وعاشق ته
دا مشکل مشقتونه د ايوب (ع)

په ژړا ژړا تر هسے حده راغے
چه ځان روند کړو په يوسف پسے يعقوب

عشق دےدا چه معشوقه شوه و عاشق ته
ښه رخسار د مهرويانو په اسلوب

هغه څه پوښتے له هجره له وصاله
چه په خپله هم محب شي هم محبوب

چه نظر ئے له صورته په معنیٰ کړۀ!
و رحمٰن وته يکسان شو زشت و خوب

* ۴ * ۲۲ *

که مے اوشي له دلبره ملاقات
يا به نۀ سم له دے دره په حيات

پس له دے م ړ د استوړنه خدائے نصيب کا
په دا درکښے، که حيات وي که ممات

ښائي دا که زۀ خپل يار وته سجده کړم
هغه يار زما قبله دے د حاجات

د خپل يار تر لعل و لبو به ئے زار کړم
که شکرے وي که قند وي که نبات

دا زما د يار جلوه ده چه ليدۀ شي
لکه نمر په صومعه او په سومنات

تر ما لا په دلبرانو ډير ميئن دے
چه خبرے کا د کشف او کرامات

د ريا له زاهدئ زما توبه ده
چه ئے کاندي څوک په رسم او په عادات

په ورځ پند او نصيحت وائي و بل ته
په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دين ئے دام وي د دنيا په لار کښے ايښے
پرے را اروي وحشيان د مخلوقات

د هغو به لور ئے سترگے وي ختلے
چه په لاس ئے سرمايه وي يا ذکوات

زۀ رحمٰن له هسے خلقو پنا غواړم
هر چه لافه کړي خلاف د مقامات

* ۱ * ۲۳ *

تا چه په دا تورو سترگو وکاته و مات
زړۀ دے زما تور کړو له دے نوره مخلوقات

ما خو چه تهٔ ولیدے هغه ساعت مے ووے
نوره به مے مینه د زړهٔ نهٔ شی له تا، مات
شیخان او زاهدان چه نصیحت و ماته وائی
نهٔ دی خبر شوی ستا د مخ له محسنات
څه اوشو که زهٔ انګشت نما شوم ستا په مینه
لا تر ما تهٔ خوښ ئے و قاضی و هم ملا، ت
مرم په دا چه ما له تا جارباسی هغه خلق
بیا دِ په دیدن تر ما ړوسي در زغلی خوا ت
زهٔ رحمٰن چه ووینم یاروا یم خدا یه خیر کړے
که بنا پیرئي ده د بنی آدم له ذات

* ۲۳ * ۲ *

آفرین د عاشقانو په همت
چه په عشق کښې یک انداز دی یکجهت
نهٔ ئے هیچرے تغیر نهٔ ئے تبدیل وی
که تمام جهان پرے وائی ملامت
که څوک سل نصیحتونه ورته کاندی
غوږ ئے نهٔ وی د هیچا په نصیحت
چه په یار پسے تر ځان تر جهان تیر شی
څوک کولے شی دا هسے مشقت
که تمام عمر ئے یار په سترګو ناست وی
تمام عمر ورته ښکاری یو ساعت
که یو دم شی هغه یار ورڅخه لرے
هغه دم شی ورته عمر د قیامت
که دوزخ لره د یار به مینه دروسی
دوزخ هم ورته جلوه کړی د جنت

د عشق لاره د توکل په ښېو غوسیږی
نهٔ په ښېو د رياضت او ديانت
په تالاش او په تدبير كله مونده شی
چه موقوف وی هغه کار په عنايت
د عاشق خاطر له غیره پاکیزه وی
د درياب په مخکښې نهٔ وی نجاست
خدائے چه زرهٔ د مطلوب کانړے کړو رحمانه
کانړے پرېوت د طالب په عمارت

*۲۵*۳*

---

چه وڼیلے مے له تا دے دا حدیث
سرنامه د هر انشاء دے دا حدیث
چه آغاز مے کړهٔ په مدح د خوبانو
ځکه ګنج بے بها دے دا حدیث
په ثنا د دلپسندو دلربا وُ
دلپسند او دلربا دے دا حدیث
لکه باد د صبحدم چه غنچه وا کا
هسے رنګے دلکشا دے دا حدیث
چه اوصاف مے د سرو شونډو پکښې راوړو
خوږ ترقند او تر حلوا دے دا حدیث
نهٔ پوهیږم چه اوبهٔ دی د حیاتو
که نفس د مسیحا (ع) دے دا حدیث
د غونډ ژبو شاعرانو د خولے نهٔ دے
ځکه هسے رنګ صفا دے دا حدیث
ستا و مخ ته که څوک شمس و قمر وائی
دروغ نهٔ دے په رښتیا دے دا حدیث

که څوک وائی چه چا کړے دا حدیث دے
رحمٰن وائي چه زما دے دا حدیث
*۱*۲۶*

چه برهم کا عاشقی د چا مزاج
حکیمان ئے درمانده شی په علاج
په آشنا پسے تل ژاړی په دوه سترګو
د اوبو په ځائے خوناب کاندے اخراج
دواړه لاس ئے وی له دواړه کونه وللی
ډوب وی تل د عاشقئ په لوئے امواج
په هغو کښے چه څه بوئی د عاشقئ وی
په کښے نهٔ وی بوئی د رسم او رواج
ابراهیم ادهم څه هسے نادان نهٔ وو
چه نظر ئے پاپه تخت وو یا په تاج
مجنون هسے رنګ میئن په لیلی نهٔ وو
چه په نورو ئے موقوف وو احتیاج
لیونتوب له لیونو نه تلونے نهٔ دے
که ئے زاج په خونه ورشی که تاراج
که ئے سر لکه منصور غوندے په دار شی
دغه دار دے و رحمٰن وته معراج
*۱*۲۷*

چه خبر شوم د ساقی د جام له راحٓ
لکه مړے ملاقی شوم له ارواحٓ
زهٔ چه زلفے د یار اووینم په خوب کښے
په شپه مشک را باندے ووری تر صباحٓ

صبا زیرے د وصال په مهجور کاندی
د مهجور خبر مونده شی له صباح
که روا کا، خون خوردن د عاشقانو
څوک وتے شی د خوبانو له صلاح
هر ساقی چه جام د عشق لوی په لاس کښیے
دا پیاله ئے په مستانو ده مباح
مخ بے مینے که څوک ستائی ستاینهٔ نهٔ شی
د ممدوح له قدره چا زده، بے مداح
د دنیا ناوے په عقد کښیے دین غواړی
اے رحمان خان ترے ژغوره له نکاح

* ۱۲۸ *

---

چه پیدا شو ستا چشمان دا سے شوخ
نور به نهٔ وی مردمان دا هسے شوخ
کجے زلفے کج آبرو لکه چه ستا دی
نهٔ لرم شته نهٔ ماران، دا هسے شوخ
دیر غمونه شوخ شوخ شته دے په جهان کښیے
ولے نهٔ لکه هجران دا هسے شوخ
مکر دیو وی چه پیغم وی په هجران کښیے
کنره نهٔ به وی انسان دا هسے شوخ
دا فتنے او فسادونه به وو چرے
که پیدا نهٔ وے اسمان دا هسے شوخ
د آشنا له غمه زړهٔ د آشنا نهٔ چوی
آفریده کړو خدائے جهان دا هسے شوخ
چه یوسف ئے د دنیا په متاع ورکړهٔ
پیدا مهٔ شه بل کاروان دا هسے شوخ

چه بوسه له یاره غواړی بے ادبه
خدائے دے نهٔ کاندی رحمٰن دا هسے شوخ

*۱*۲۹*

بادشاهانو که قصرونه کړل آباد
ما د عشق عمارتونه کړل بنیاد

نوم د کوم یوهٔ بادشاه هسے یادیږی
لکه نوم چه د مجنون او د فرهاد

عشق عاشق لره یو هسے پیر استاد دے
چه به نهٔ وی بل دا هسے پیر اُستاد

دغه واړه کرامت د عاشقئی دے
چه څوک قطب کا څوک غوث او څوک اوتاد

د دنیا چارے همه واړه فانی دی
څوک به څه کا په دا چارو اعتماد

ژبه سورے چه د نمر په مخکښے کړځی
نهٔ استوونه چرته کاندی نهٔ استاد

هیڅ وفا ئے له هیچا سره اونهٔ کړه
که جمشید وو که بهمن که کیقباد

که جمشید وو که بهمن که کیقباد وو
که نمرود وو که فرعون وو که شداد

رسوائی ئے تر مراده هیڅوک نهٔ دے
همه واړه هسے پاتے شو نامراد

نهٔ چا ختم، نهٔ دعا ورپسے اوکړه
که ئے آل که ئے عیال وو که اولاد

زهٔ رحمٰن د زمانے له جوره ورومم
خپل صاحب لره په داد او په فریاد

*۱*۳۰*

که قاصد ئے د مقصود
آواره کړه زیان او سود

هر چه درشی ستا په مخکښے
واړه اوکړه بهبود

هر چه دی بغیر له خدایه
همه وشمیره نابود

رضا وسپاره قضا ته
مدام خوښ اوسه خوشنود

و هستئی وته جلوه کا
لکه ابر هسے دود

تهٔ و ځان وته نظر کړه
چه قبول ئے، که مردود

ننداره د خپل صورت شه
چه مسلم ئے که جهود

آستی د ابراهیم شه
تابع مهٔ شه د نمرود

د غفلت له خوبه پاسه — څو به اوسې خواب آلود
مقید او مشغول اوسه — په دعا او په درود
اسمان طوره په رکوع شه — زمین طوره په سجود
هر اشیا د حق ثنا کا — په نغمه لکه داؤد
که بیدار شې خود به واورې — په هر لورې دا سرود
که آیاز شې بندګي کښې — نور به ناز کړې په محمود
هر اسباب د ښو د بدو — مهیا دې هم موجود
هر دانا ئې ویله بیل کړه — فرسوده او نافرسود
څو سپند نه شې په اور کښې — نه وي خوند او بوی د عود
ځان له خبثه پاکیزه کړه — لکه بحر نامعدود
هلاك څکه شه رحمانه — چه ئې پاك نه شه وجود

رحمٰن بے د یار له ذکره
نه زده بل گفت و شنود

* ۲ * ۳۱ *

زه که لاړې د وفا کړمه هرچند — هغه یار مې باور نه کا په سوګند
زه بې یاره هسې زیست کړم په جهان کښې — لکه زیست وي په مجمر کښې د سپند
آبروئي د طالبانو خپل مطلب دے — آبروئي د غلامانو خپل خاوند
لکه یار مې سربلند دے په جهان کښې — په تاثیر ئې هسې زه یم سربلند
لکه یار چه مې سرګند دے په جهان کښې — زه هم هسې په دا دور کښې یم سرګند
چه مې مدح د خوبانو کړه آغازه — هر کلام مې دلپذیر دے دلپسند
لکه خوند لري زما خوږې خبرې — په شکرو کښې هم نشته هسې خوند
هغه قند چه خدائے زما په خوله کښې کیښود — حلوایانو څخه نشته هسې قند
لکه زه چه سخندان او هنرمند یم — بل به نه وي سخندان او هنرمند
په اشعار کښې قوتناك لکه زمرے یم — ولے نه یم د زمري په څیر ګزند
هم په مدح هم په هجوه ښه پوهیږم — ولے نه یم په دا چارو ډیر خورسند

بے له عشقه که یې عیب که یې هنر دے | ما غوږ کړے دے له ځانه بل پیوند
زه عاشق یم سروکار یې دے له عشقه | نه خلیل نه داؤزے یم نه مهمند
چه وماته نصیحت کا څوك په عشق کښې | گویا پلار ته نصیحت کاندی فرزند
هرسړے چه آئینه په لاس کښې خاندی | گویا کاندی په خپل ځان پورے ریشخند

رنگریزان دِ اول خپله ویره رنگ کا
نور بیا هاله دِ رحمٰن ته وائی پند

* ۳ * ۳۲ *

---

ستا په عشق کښې هسې خلاص یم له شعورہ
چه یوه خبره نه لرم منظورہ!

طبیبان وائی چه صبر دِ دارو دی
خدائے زمونږ فرقه پیدا! کړه ناصبورہ

ځوروے هر چیرے ترلے په دشمن شی
یاره ستا سترگے دوستان وژنی بے تورہ

معشوقے د زمانے شوے سره ټولے
د زړه خونے ئے اولوتلے بے صبورہ

زه تنها په ضرور نه یم ستا له غمه
پیدا شوے عاشقی ده له ضرورہ

هر یو شپے لره ورځ شته دے په جهان کښې
زما عمر جدائے کړلو بے نورہ

مهرویان وفا له هیچا سره نه کا
دا خبره په عالم کښې ده مشهورہ

چه خبر شی واره گوتے په خوله نیسی
په هجران کښې چه خبر شی له مهجورہ

د رقیب د بدو سترگو نه ځان ژغوری
هر عاشق چه بهرمند وی له حضورہ

همره توان او توفیق نهٔ ګنړم په بخت کښې
چه تائب کا ما، له فسق او له فجورَ
په نظر د مدعیانو تور کودے دے
که نے کښینوے د کټ د پاسه حورَ
د رحمٰن د سترګو نم په هالهٔ وچ شی
که وچ شوے د چا نم وی له ناسورَ

* ۱ * ۳۳ *

همره اوښکے مے بهیری په رخسار
چه غرقاب مے هم ګریبان دے هم کنار
هغه یار مے هسے ناست د زړهٔ په سر دے
لکه اینږے چه چا ګل وی په دستار
که څوک وائی چه مار کله په کټ خیژی
زهٔ خوړلے یم په کټ د زلفو مار
خو د یار بیمارے سترګے خدائے خونی کړے
ګنړه خون کله کولے شی بیمار
که په دار شم زهٔ د یار له لاسه، خوښ یم
سر و قد دے زما یار او زما دار
بس که دا چه زهٔ په یار پسے غوغ غوغ یم
خدائے دِ نهٔ کا لکه زهٔ یم، هسے یار
همره جور لکه چه یار ما سره وکړهٔ
یاد مے نهٔ دے همره جور د اغیار
دلبران کوډے جادو کړی زړونه اخلی
هغه وایه چه بے کوډو وی دلدار
چه د زړونو له نمانځلو بے پروا دے
تروکه زړهٔ د سړی پوسی، څه پکار

په ګریبان ئې تل د اوښکو باران ووری
نۀ ورکیږی د رحمٰن د زړۀ غبــار
* ۲ * ۳۴ *

څو جفا قبوله نۀ کړی د اغیار
ویه نۀ وینی په سترګو مخ د یار
چه اول ئې خار زرغون شی په پهلو کښې
غنچه هله شګفته شی په ګلزار
جنت چا په ریاضت موندلے نۀ دے
ولے بویه هر بنده لره خپل کار
که موندے شیے خوشبوئی په خوشحالئې کښې
پروت به نۀ وے په چندنړ باندے بنامار
آب تر لعلو نـ لاله ګلونه ډیر دی
بخت دے دا چه څوک عزیز کاندی څوک خوار
هسے زیب کا په بیاض د رحمٰن شعر
لــکه زلفے د خوبانو په رخســار
* ۳ * ۳۵ *

چه د زړۀ دے پړے ترلے آســتوار
دا جهان دِ د نیکۀ دے که د پلار
تۀ خپل پلار او نیکۀ اوګوره چه څه شو
هسے ستا دے هم په دوی پسے رفتار
تل روسے د روستی ٔپل دے پړے تیریږی
کړے نۀ دے چا په ٔپل باندے قرار
هسے نه چه زۀ پوازے تاته وایم
راغلۀ، لاړۀ، ستا په طورِ صد هزار

دعوئ مهٔ کړه په ناحقه خپل به ئې نهٔ کړے
پردے ښهر، پردے ملک، پردے دیاز

چه استوږنه په پردی وطن کښې کاندی
هغه نهٔ لری هیڅ واک او اختیار

که هزار قسمه اوخوری په یو کار کښې
نهٔ کا څوک په مسافرو اعتبار

چه په صبح شگفته شی په شام رژی
څه امید دے د گلونو په گلزار

که دِ روز که دِ عزیز او که دِ یار وی
مهٔ ئې روږ، مهٔ ئې عزیز گڼره، مهٔ یار

چه پیدا شی همگی واړه فنا شی!
اے رحمانه، دا جهان دے، دا ئې کار

* ۴ * ۳۶ *

هر چه نهٔ وی خوار و زار په طلب د خپل دلدار
تر پرونی ئې صدقه شه د هغه عاشق دستار
هزار حیف دے هزار حیف هزار څه لا صد هزار
چه عاشق په عاشقئې کښې نهٔ حلال وی نهٔ مردار
نهٔ پتنگ د خپل چراغ وی نهٔ بلبل د خپل گلزار
نهٔ مجنون غوندے رسوا وی نهٔ منصور غوندے په دار

دواړه نهٔ کیږی رحمانه
یا به یار شے یا بیزار

* ۵ * ۳۷ *

خوك دِ راكاندى قسم په كرد كار
كه دِرم لرم په كور كښيے يا دينار

زهٔ دينار او درم نهٔ لرم په كور كښيے
ولے نور عالم مے بولى دنيا دار

هم په دا چه نهٔ له ځايه چرته خوزم
نهٔ د هيڅ يوهٔ مخلوق يم منت بار

نهٔ مے ښكته ملك ليدلے دے نهٔ پورته
خبر نهٔ يم په يمين او په يسار

آب و خور لكه آسيا په ځائے را رسى
په خپل كور كښيے مے سكون دے هم رفتار

لكه ونه مستقيم په خپل مقام يم
كه خزان راپاندے راشى كه بهار

توكل مے لاس، پښے، سرهٔ كړهٔ په نكريزو
چه په ځائے ئے كښينولے يم قرار

چه زما په باب څه ښكلى دى را رسى
كه رحمت دے كه زحمت دے وار په وار

چه هژده هزار قومونه ئے پيدا كړهٔ
مربّى ئے دے هغه پروردګار

كار همه په اِراده د خدائے موقوف دے
هيڅ موقوف نهٔ دے د چا په انتظار

غم به هيچرے ونهٔ كا په دنيا كښيے
كه څه كيږى د رحمٰن په اختيار

* ۳۸ * ۰۶ *

ما چه جور و جفا بيا موندهٔ له يار
د وفا طمع به څهٔ كړم له اغيارا

له دښمن به د ښادئے طمع څوك څه كا
چه د دوست له لاسه غم شى وردوخار

دا ګله مے ډيره ډيره له هغو شى
هر چه طمعه ترے د ښو كيږى بسيار

دل آزار، كه دل آزار كړه، سانه نشى
حيف خو دا دے چه دلدار شى دل آزار

طالبان خو تر مطلبه پورے پرهٔ دى
خدائے دِ څوك بيوفا نهٔ كا وفادارا

كه له ډيرے حيا نهٔ كورے و چا ته
څه خو مخ كړه د رحمٰن د زرهٔ د پار

* ۳۹ * ۰۷ *

له د عشق لاره ازغنه ده هر کوړ
د عاشق په پښو کښېږي دي څپلئې د اور

له دیدن د یار موندهٔ په انتظار شي
زما سترګې دي شبنم غونډې څلور

نوم د اوسېږې، محتاج د نرم آب دے
قرب و حلم یو په بله دے تر زور

له اوښئې له سرکشئې زما توبه ده
خدائې څوک مکړه د آسمان په څیر نسکور

خدائې زده، چه سودا به پېښه په بازار شي
د بازار خبرے نهٔ شي په خپل کور

دا همه واړه عاشق لره پیدا شو
که تهمت که ملامت دے که پیغور

ناز و جور و کبر د خوبانو
ما په ځان دي قبول کړي لکه پور

راحت بے زحمته نهٔ دے چا موندلے
غم ښادي ده د دے دهر رور او خور

رحمان هسے په خپل یار پسے غوښ غوښ دے
لکه غوښ په خپل اولاد وي پلار او مور

* ۸ * ۳ ۰ *

زهٔ عار نهٔ لرم په عشق کښې له پېغورَ
بې پروا يم د ستی په شير، له اورَ
پړدی په خوله د سمندر، مهر د مو مو
څوک چه ما منع کوی د عشق له شورَ
بې هجرانه زمـا بله خواری نشـته
ولې نشـته تر دا بله خواری نورَ
لکه تهٔ چه خدائے هر ګوره بنائسته کړے
زهٔ ئے هم هسې بې صبره کړم هر ګورَ
چه په تور په سپين سر ارموی دا څوک دے
که ته نهٔ ئے، په مخ سپين او په زړهٔ تورَا
د رقيب له بده خويه په څه وايم
چه لا يار ورـره مل شی هلته ګورَ
چه ئے پور د مرګ تر پوره پورے هيڅ دے
هغې توبه د بيلتانهٔ له بده پورَ
عاشقی سرے مجنون کاندی رحمانه
ګنړه څوک په هوښيارئے اوزی له کورَ
* ۱۰۳ *

دا څه مخ دے منور چه هم شمس دے هم قمر
دا څه زلفې دی مشکينې چه هم مشک دے هم عنبر
دا آبرو څه پيوسته دی چه هم نيش دے هم نشتر
دا څه سترګې دی قاتلې چه هم سيف دے هم خنجر
دا څه شونډې دی مئے ګونې چه هم مئے دی هم شکر
دا څه سپين سپيځلې غاښ دی چه هم دُر دی هم ګوهر
دا څه سيب زنخدان دے چه هم سيم دے هم ثمر
دا څه قد او څه قامت دے چه هم ګل دے هم عرعر

دا څه ملا ده باریک وضع چه هم موئے دے هم کمر
دا څه زره دے د خوبانو چه هم موم ذے هم حجر
دا څه یار دے نه پوهیږم چه هم دل دے هم دلبر
دا څه بت دے زما ربه چه هم بت دے هم بشر

دا څه شعر دے رحمانه!
چه هم گنج دے هم هنر

*۱۰ * ۴۲*

هسے تله کاندی و کور ته یاران زر زر
لکه دروسی چه خپل کورته کاروان زر زر
هسے زر زر مرگ په مونږه شتابی کا
لکه لو د پاسه کښت کا دهقان زر زر
هسے زر زر صورتونه دی نړیږی
لکه رژی لاله‌زار په خزان زر زر
هسے زر زر دا دنیا و بله آوری
لکه آوری وبله ریگ روان زر زر
هسے زر زر دا شیرین عمر تیریږی
لکه بحر چه بهیږی روان زر زر

د بنړو زنبل هم هسے زر زر نه وی
لکه دروسی له جهانه رحمٰن زر زر

*۱۱ * ۴۳*

دغه یار دے دا اغیار دغه گل دے دغه خار
دغه گل دے دغه خار دا منصور دے دغه دار
دا رقیب دے دا جبیب دے دغه گنج دے دغه مار

دغه عشق دے دغه عقل     دغه غم دے دا غمخوار
دا هجران دے دا وصال دے     دا خزان دے دا بهار
دا طاعت دا معصیت دے     دغه نور دے دغه نار
دا عالم دے دا جاهل دے     دا خفته دے دا بیدار
دا رحمٰن دے دا جانان دے
دا طبیب دے دا بیمار

* ۱۲۰ * ۴۴ *

چه به زور ورسره نه ئے برابر     د هغو تر څنګه مهٔ کښینه زړهٔور
زورآور خو اور آوبهٔ دی فهم او کړه     چه ډوب نهٔ شے یا وریت نهٔ شے په شرر
زندګی که بے له اوره اوبو نهٔ شی     تل هم نهٔ دے هیڅا ابنیے ہرے تتر
خدائے ورمنډوله سیلاب د ڇا په خونه     که په قطع هم اوبهٔ وی د کوثر
اوږ نهٔ لګیږی اور د ڇا په خونه     که رنړا ئے وی د شمس او د قمر
چه ئے تول صورت غلبیل شی په اغزیو     وخوړ مهٔ شه د هغے اوئے ثمر
د هغے دیوال په سوری څوک کښیے منه     چه ولاړ وی لکه زوړند چاوُد کمر
چه په کیله دِ خبیږوی مخ ئے ورک شه     که د سرو زرو چاړهٔ وی یا خنجر
ناکرده سودونه ډیر دی په جهان کښیے     سود هغه وی چه د خیر وی نهٔ د شر
و آوبو ته اچوهٔ نهٔ شی، ځان خوږ دے     ګټره ډیر دی په دریاب کښیے دُر ګوهر
چه له آبه له حرمته سره نهٔ وی     خدائے ور مهٔ کړه چاته هسے سیم و زر
زور آور که رسوی و چاته فیض     له دے فیضه سره اوګټره ضرر
په یارئے د زور آورو غلط مهٔ شه     مګر دا چه تر دهٔ، تهٔ بے زور آور
په هروخت چه دے مغلوب وی تهٔ غالب ئے     ترو هاله ئے قدمونه پرده په سر
یا خودا چه ته قدم ئے په در نهٔ پردے     هله پسه ئے ځان اوګټره پدر
چه هنر ګټری یاری د زور آورو
زهٔ رحمٰن کومه پول په دا هنر

* ۱۲ * ۴۵ *

په نظر د بې بصر ... لکه شـام هسې سحر
لکه شام هسې سحر ... لکه سنګ هسې ګوهر
لکه سنګ هسې ګوهر ... لکه خاورې هسې زر
لکه خاورې هسې زر ... لکه خیر هسې شـر
په نظر ئې معلومیږي ... همه واړه بـرابـر
که څوك بـه ورسره کاندي ... تر بدئ ئې وي بتر
که څوک بد ورسره کاندي ... تر نیکئ بې وي بهتر
نه په بد وئیل زهیریږي ... نه په ښو د چا زړه‌ور
په ثواب او په خدائی ئې ... نه دلیل وي نه نظر
نه آګاه په خپل بهبود وي ... نه آګاه په خپل ضرر
نه په عیب باندې پوهیږي ... نه پوهیږي په هنر
لکه روند او کونړ چه ګوري ... هسې هیڅ نه وي خبر
له طاعته له ګناه ... څه خبر وي څناور
څناورو نور څه نه زده ... یا ئې خوب وي یا ئې خر
دا خو ته ئې زما نفسه ... چه دِ کرم زړهٔ کور و کر
تمام او وخت له عقله ... په دنیا هسې اوتر
نه دِ فرض د خدائے ادا کړهٔ ... نه سنت د پیغمبر (ص)
نه دِ مرګ په زړهٔ یادیږي ... نه خواري دِ د محشر
اُودهٔ پروت ئې دا دِ نه زده ... چه په خوا لرم سفر
په هردم درڅخه دروسي ... که پوهیږې دا بشر
هغه تور ویښتهٔ دِ څه شو؟ ... چه هم مشک وو هم عنبر
هغه قد د مجنون بید شهٔ ... چه چنار وو هم نښتر
تن دِ درست زیر و زبر شهٔ ... زړهٔ دِ نه شو لرو بر
تر پنجا و پنځ تیر شوے ... ته لا څان بولې بسر
نه دِ ترس شی نه د ویره ... نه په زړهٔ باندې اثر
بل په نهٔ وي لکه ته بې ... هسې شوخ او څیګرور

په غفلت دِ عمر تیر کړو — نهٔ رهرو شوے نهٔ رهبر
عبادت دِ په ریا شو — لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر — پټ په زرو کښې حجر
لکه پټ وی په دانه کښې — سل ازغی ئے د شجر
لکه سحر چه بر پا کا — سحر ګر او جادوګر
لکه نقش صورت بے روحٓ — چه تصویر کا مصور
لکه تش کدو بے مغزه — میان خالی او تن پرور
لکه زړے په میوه کښې — درون سنګ بیرون ثمر
لکه بے لاسه لستونړے — سر تر پایه پاٹے تر سر
لکه ټګ او دغه باز وی — په مرغانو کښې ډګر
لکه بے نمکه ناوړه — چه په سر کاندی څادر
تر میزر لاندے چا څهٔ زده — چه دختر دے که مادر
نهٔ ئے حسن نهٔ جمال وی — غلوی خلق په زیور
هټے توبه له ګریبانو — لکه زورند چاوډ کمر
نیم په زمکه کښې دننه — نیم بر سیره لکه غر
په دستار کښې ئے مسواک وی — تر بغل لاندے خنجر
په آبرو کښې پټ بسرے — په وېښو کښې پټ ژور
په شپه وینے د مظلوم خورے — صبا کښېنی په ممبر
په زړهٔ تور لکه تبۍ وی — په مخ سپین لکه قمر
د دنیا په طلب ګرځی — بولی ځان په قلندر
کلمه وائی په ژبه — په زړهٔ نهٔ لری باور
په مثال د منافقو — نهٔ مسلم وی نهٔ کافر
نهٔ مسلم وی نهٔ کافر وی — نهٔ پخلا نهٔ مرور

حیران ګرځي سر وغلي ‌ ‌ ‌ کوڅه په کوڅه او در په در
همیشه رفت و آمد کا ‌ ‌ ‌ د زردارو په ګذر
په کوڅه د دنیا دارو ‌ ‌ ‌ ګوره خوري کا لکه خر
اورنګ زیب هم یو فقیر وو ‌ ‌ ‌ چه توپئې ئې وه په سر
و توپئي وته ئې شا کړه ‌ ‌ ‌ چه قادر شهٔ په افسر
خوړے همره فقیري وه ‌ ‌ ‌ چه څه ئې نهٔ وو میسر
چه فلک ئې یاري اوکړه ‌ ‌ ‌ نور ئې ملک کړو مسخر
ګوره څه چارے ئې اوکړے ‌ ‌ ‌ په عیال د خپل پدر
وار په وار ئې تر تیغ تیر کړهٔ ‌ ‌ ‌ د خورم تمام ټبر
یو ټبر د خورم څه وو ‌ ‌ ‌ ډیر عالم ئې کړهٔ ډبر
تمامي جهان ئې ونغرد ‌ ‌ ‌ چه ئې لاس شهٔ باندے بر
په فریب فریب ئې خپل کړ ‌ ‌ ‌ بیجاپور او بهاګنګر
بیجاپور بهاګ نګر څهٔ وو ‌ ‌ ‌ لا جنجي او جنجاور
هم ئې هند په ډکه واخست ‌ ‌ ‌ هم کابل او پیښاور
بیا ئې ذکر شو په زړهٔ کښے ‌ ‌ ‌ بادشاهي د هفت کشور
له حرصه ورته هیڅ شو ‌ ‌ ‌ هم دارا او سکندر
خیال ئې دا وو په خاطر کښے ‌ ‌ ‌ چه به خپل کړم بحروبر
بارے ورځ ور څخے لاړه ‌ ‌ ‌ وخت پرے راغے نمازډیګر
نهٔ ئې مراد د زړهٔ حاصل شو ‌ ‌ ‌ نهٔ ئې ځځ کړو خپل ټټر
همګي شو څنے پاتے ‌ ‌ ‌ که ئې ملک وو که لښکر
خالي لاس له دنیا آووت ‌ ‌ ‌ لکه عین درویزګر
له دنیا ئې هیڅ یو نهٔ وړ ‌ ‌ ‌ مګر څیرے یو څادر
خوار حیران په زمکه پریوت ‌ ‌ ‌ بے بالین او بے بستر
نهٔ پوزے شو تر دهٔ لاندے ‌ ‌ ‌ نهٔ ترے لاندے شو تغر
د هنرے په څیر خفیف شو ‌ ‌ ‌ چه ثقیل وو لکه غر
د سیلاب په مخکښے لاړو ‌ ‌ ‌ لکه خس وي یا وزر

حق ئے پاتے پہ گردن شو · د سپاهي او د چاکر
اوس ئے زۀ پہ روح دعا کړم · کہ ئے خدائے کا بهرور
حق تعالی کہ ئے نصیب کا · بہ شیرین حوض کوثر
د جنت پہ خوشبوئے ئے · خدائے دماغ کړہ معطر
پہ درست هند باندې ئے حق وو · هند یو شهہ وہ دے وو نمر
د دے نمر پہ رویښنا ئے · تمام هند وو منور
پہ رڼرا ئے خلقو زیست کړۀ · نہ څہ خوف وو نہ خطر
چہ پہ نوم د اورنگ زیب وو · وخوړ گاؤ هغہ دفتر
اوس نوبت د شاہ عالم دے · دور او طور ئے شو دگر
خدائے زدہ څہ بازی شی پیښہ · عاشورہ شی کہ اختر
رنگا رنگے بازی کاندی · دا اسمان دے بازیگر
گاهے تلخ شی لکہ زهر · گاہ شیرین لکہ شکر
چہ څہ اوشو هغہ اوشو · لا بہ کیږی مقدر
ما خو نوم د اورنگ واخست · دا احوال دے د هر هر
هر سړے د خپلے خوئے · هم بادشاہ دے هم سرور
هر چہ اهل د دنیا دی · وارہ هسے دي اکثر

دا بیان دور و دراز وو
رحمٰن وکړۀ مختصر
* ۱۳ * ۳۶ *

---

ما پہ تا هسے دا سپینے جامے رنگ کړې
تہ لا بیا پہ ما گمان د نام و ننگ کړې

هیڅ اثر دې پہ سنگین خاطر اونہ شو
کہ هر څو مے معطلے در هسے لنگ کړې

دلسوزی به دِ په نورو خلقو څه شی
چه له ما غونډے مخلصه سره جنګ کړی
ته په عشق کښیے ما هالهٔ دروغژن بوله
که یو بل هم هسے ما غونډے ملنګ کړی
دا نارے سورے غمازے ذی په عشق کښے
ګنړه تل به د بلبل په څیر پتنګ کړی
د عاشق و معشوقے ته سپینه لار ده
ته وماته دا سپین لار ولے ګړنګ کړی
چه یو دم یے له نظره ته یو خوا شے
دا جهان لکه لحد راباندے تنګ کړی
ه بنهٔ خویٔ سره د خلقو افسانه شے
خدائے زما له کم بختیٔ نه په زړهٔ سنګ کړی

دا دِ څوک تر څنګه ناست دے راته وایه
چه خبرے له رحمٰن سره په جنګ کړی

* ۱ * ۴۷ *

خدایه زړهٔ د مهرویانو مهربان کړی
ما له یاره، یار له ما سره یکسان کړی
هغه درد چه د آشنا د بیلتانهٔ دے
رفع دفع ئے - وصل په درمان کړی
ته چه ما منع کوے د یار له لورے
کشکے باد د سحر منع په بوستان کړی
غم د هجر چه تیرے تر کانړی اور دے
له دے غمه یے په امن و په امان کړی

کار و بار د عاشقۍ چه ډیر مشکل دے
دا مشکل زما په ما باندے آسان کړ

حجاب لرے کړه زما، له یار تر میانه
بے حجابه مخ د یار راته عیان کړ

که مطلب د نور چا نورے مرتبے دی
ما گدا په آستانه د خپل جانان کړ

که دا نور عالم وبله خواته کوری
ما په لورے د دلبرو نگران کړ

نهٔ به ما منع کړے تهٔ، له خپله یاره
نهٔ به کوز په زمکه ستوری د اسمان کړ

چه زهٔ یار لره ورځم په هغے لارے
مهتر خضر او الیاس مے رهبران کړ

تاریکی د معصیت راځخه واخلے
د طاعت په روښنایئے مے زړهٔ روښان کړ

چه زما په پریشانئے نے زړهٔ ښهٔ کیږی
زړهٔ نے ما غوندے په یار پسے پریشان کړ

چه زما په چمن راشی گستاخی کا
د شبنم په/ خیر نے عمر یو زمان کړ

چه آزاده د منکر تر سره پریوزی
د فلک په خیر مے توره د زبان کړ

هغه غشی چه د ترکو د غمزو دی
هر کلام مے د هغے غشی پیکان کړ

چه کشور د افغانانو معطر شی
د هر بیت مصرع مے زلفے د خوبان کړ

چه هر حرف ئے د نافے په ځیر خوشبو دے
برکت مے په جزدان په قلمدان کړو
الٰهی د خپل حبیب (ص) له برکته
دا ساده انشا رنګینه د وحښن کړو

* ۲ * ۴۸ *

تا چه مخ د پرۍ ستر ګے د آهو کړو
نه پوهیږم چه آهو ئے که جادو کړو
دعا ګوئ چه د چا ورسری څه بنادی ده
ته په څه زما و مرګ وته آرزو کړو
په محراب د عاشقانو کانړی اوری
ته چه چین د جبین غوټه په آبرو کړو
تا چه رنګ د ګلو واخست زه پوهیږم
زرغونه به په چهره زما ګنګو کړو
ستا له ډیره ډیره جوره معلومیږی
چه به ما په خپلو وینو کښیے لاهو کړو
که یو څله تورے زلفے کړے پریشانے
خاکستر به په چمن کښیے کشمالو کړو
درست جهان به قاف تر قافه معطر شی
که یو څله شانه ګله په ګیسو کړو
ستا د زلفو مار خوزلی به روغ نه شی
که افسون د مسیحا (ع) ورباندے هو کړو

لاس و ښیې دِ بې زیورو ښائسته دی
څه منت به د پائلو د باعو کړ
که سوزن د ښړو راوړے تار د زلفو
د رحمٰن د زړګی زخم به رفو کړ
* ۳ * ۴۹ *

که نظر په ماتو ګوډو د روزګار کړ
هوره نه دی چه حساب او یا ئے شمار کړ
په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وی
د بد خواه خاطر به خوش دوست به آزار کړ
صبر اونیسه په مخکښې مراد غواړه
په تلوار به هیڅ اونکړے که تلوار کړ
رضا وسپاره قضا ته فراغت شه
او که نورځه نورځه واڅے ځان به خوار کړ
آزادي او کاروبار دی سره لرے
لاس له کاروباره اوباسه که کار کړ
چه په خپله ئے فاني بولے رحمانه
تر و بیا څه په هغو چارو اعتبار کړ
* ۴ * ۵۰ *

که د عشق شکرے تیرے تر ګنو کړ
نور لذت به لکه زهر هسے تو کړ
که دِ اوشي ملاقات د سرو قدو
د فاختے په څیر کوکے په کو کو کړ
عاشقي به تیره توره در په لاس کا
نور د صبر د سکون په ملک به هو کړ

په انصاف او عدالت به نوشیروان شے
هر عمل که د خپل ځان په ترازو کړ
د سکندر په څیر شاهی به دِ روزی شی
که سر کوز په آئینه د خپل زانو کړ
تریخ لوګے به دِ د قند په څیر نغرد شی
که صورت د عشق په اور کښې تماکو کړ
او به نهٔ وینے د ترکو ہرندے سترګے
مګر ځان په خپلو وینو کښې سالو کړ
روغ به نهٔ شے بے د یار له بنهٔ دیدنه
که سل پنده سپیلنی و ځان ته لو کړ
د غفلت لیچن لیمه به دِ بینا شی
که د یار د کوڅے خاورے تهٔ څښکو کړ
دا دارو ته بد دوا کوے طبیبه
چه د یار په درد و غم کښې مے دارو کړ
نصیحت په عاشقانو اثر نهٔ کا
دا محنت واره بیځایه بے قابو کړ
په رحمٰن باندے بے یاره خوب حرام دے
که ئے سل بالښته لاندے تر پهلو کړ

* ۱ ح * ځ *

ساقی پورته شه د میو جام تیار کړ
عمر هیڅ معطلی نهٔ کوی تاوار کړ
هر دم تیغ دا ستا زما په ګلو ګرځی
هر نفس د خپل نفس له تیغه دار کړ

تر خودئ په هورته پله پلا نشته
خادمی د بے خودانو په دربار کړ

دا پنځه ورځے ژوندون چه غنیمت دے
شکرانه په دا نعمت د کردګار کړ

که غمخوار غوارے په غم او په اندوه کښے
بیبنه دکه د شرابو اختیار کړ

خو دِ دوه سترګے غریبۍ په جهان کښے
ننداره په هر ساعت د خپل نګار کړ

هغه څوک دے چه تهمت پرے وایه نهٔ شی
غوږ په هیڅا پاندے مهٔ پاسه خپل کار کړ

بے وفا دی : دے دهر یاران واړه
چه دِ پس له مرګه یار شی هغه یار کړ

د مدعی په خوله چه ورشی هغه وائی
ګوش او هوش د محبانو په ګفتار کړ

رحمان وائی د دنیا چارے فانی دی
البته په دا خبرو اعتبار کړ

* ۶ * ۵۲ *

خو به وران شی د دنیا بازار لتار
هر نفس د پیلتانهٔ په تاخت لتار

لا غنچے په باغ کښے سترګے سهردِ نهٔ وے
بادِ خزان ئے د زړهٔ مینه کړه ویجار

هسے باد پرے د فنا له لوریه والوت
د لاله ګوله ئے پرے پسته له نار

څه بزرګی به ئے د باز و د هما وی
زبانی ذکر که سل ونګه ټکره جرا ر

که سل زره کاله نے تیر شی په اوبو کښیے
په نرمئے په نرمه نهٔ شی وچه تراړ
تر دا هسے عمر نهٔ عمر بهتر وی
هر چه حال نے څنکدن شی عمر واړ
ترو له خلاصه بندی بنهٔ نے تهٔ رحمانه
چه د یار د زلفو ځیل دِ شی په غاره

*۵۳*ے*

په پیریٔ کښیے چه هوس د مئے و ناب کړ
یېهوده گمان په صبح د مهتاب کړ
بے طاعته عنایت غواړے له خدایه
د عتاب په ځائے آمید تهٔ د ثواب کړ
دانسته گناه کوے توبے اوکاږے
لکه بت هسے په غتو سترگو خواب کړ
په هغو شونډو چه حمد و ثنا وائے
هم هغه شونډے بیا دوبے په شراب کړ
په هغو غوږو چه ذکر د خدائے اورے
بیا سماع په هغو غوږ و د رباب کړ
علم او کړے هیڅ عمل ورباندِ نهٔ کړے
لکه طفل هسے لوبے په کتاب کړ
په شپه پروت ئے د مغان په میخانه کښیے
او په ورځے مخ په لورے د محراب کړ
تمام عمر د دنیا په طلب کړځے
بیا د خدائے په طالبانو ځان حساب کړ
له خالقه دِ نهٔ شرم نهٔ حجاب وی
له رحمانه گوبنه ونیسے حجاب کړ

*۵۴*۸*

چه غرقاب شی تور مژگان په نم د زړ
نور خراب شی خانمان په نم د زړ
عبث وائی غم د زړهٔ و بو الهوس ته
څه پوهیږی هلکان په غم د زړ
په بل مخ باندے سوا د یار له مخه
ما ترلی دی چشمان محکم د زړ

چه نے عرش او کرسي لاندے تر قدم وي
بالا تر دے هسے شان قدم د زړ

دخلیل (ع) تر کعبے دا کعبه ده لویه
که آباد کا څوک ویران حرم د زړ

که نور خلق قدسونه پودي په زمکه
ما دي ایښي په اسمان قدم د زړ

دا مکان چه د اسمان زمکے تر میان دے
یو خلوت دے دا مکان سلم د زړ

زۀ ملهم د زړۀ له چا غواړم بے ربه
چه کړے نۀ شي طبیبان ملهم د زړ

چیورتي همدمان ډیر دي په دنیا کښے
ولیے نۀ موسي رحمٰن همدم د زړ

* ۹ * ۵۵ *

---

لکه کاندي په کوتره نظر باز
هسے زۀ یم د دلبرو نظر باز

زۀ نور چا وته د راز خبرے نکړم
بے هغو چه سوني مژګان لري دراز

بل بادشاه لره محال دے ملک د زړونو
مګر مغ د چا محمود وي خال آیاز

ستا د زنے تر سیب پورے راښکاریږي
نورے زنے د خوبانو لکه پیاز

د تصویر د ګلو طمع د بوئي مۀ کړه
بے وفا دي واړه ترکے د مجاز

هغه یار که په خپل ناز خوښ و خرم وي
زۀ هم خوښ یم همیشه د یار په ناز

که څوک آه و فریاد بنهٔ ګڼړی په عشق کښې
زهٔ په عشق کښې دغه کار ګڼړم غماز
ښادي هر چرے د غم په اندازه ده
هسے غم د دے دنیا دے په انداز
نیستئے واړه د هستئے په دنبال ګرځي
نهٔ ډوبیږی په اوبو کښې تش جهاز
دا قاعده ده لکه لوړ هوره زوړ وی
یو صورت دے هم نشیب شی هم فراز
همیشه ے لاس نیولے دے دا خواست کړم
چه مدام دِ د یاز ناز وی زما نیاز
چه یکسان ګوری هم شاه ته هم ګدا ته
هسے یار دے د رحمٰن غریب نواز
* ۱ * ۵۶ *

که بے ځایه زرګے نهٔ اوکښې آواز
نهٔ صیاد ځنے خبر وو نهٔ شهباز
هم له دے خبرے هسے معلومیږی
خپل آواز دے هر سړی لره غماز
د منصور و حال ته ګوره حال ئے څه دے
خدائ دے فاش د هیچا نهٔ کاندی پټ راز
دریغه دریغه که روستے عقل رومبے وے
د انجام خبرے نهٔ شی په آغاز
نیک عمل د عاملانو نیک فرزند دے
خدائے څوک مکړه شراب خور او قمار باز
چه فرزند ئے شراب خور او قمار باز وی
نور ئے کاڼړے شی د پلار په خونه ساز

خدائے له هسے رنگ زاوزاده امان واکره
چه بے دین، بے دیانت شي، بے نماز
چه منکر یوے اعتراض کولے نۀ شي
دا دِ شعر دے رحمانه که اعجاز
* ۲ * ۵۷ *

بد اختر به نیک اختر نۀ شي هرګز
مرغ چیچ به دُر ګوهر نۀ شي هرګز
که مکان ئے په اسمان دے غزا اوشوه
ستاره به شمس قمر نۀ شي هرګز
که ئے اصل له یوے زمکے وی نو څه شو
بید به سرو صنوبر نۀ شي هرګز
که همه عمر باران وربانده اوشي
خس به ګل د پیغمبر نۀ شي هرګز
له نا اهله د وفا طمع او نۀ کړے
ګندله نل به نیشکر نۀ شي هرګز
که تور غر له څایه خوزی او به خوزی
ولے نور به مقدر نۀ شي هرګز
د رحمٰن په باب چه اوشو هغه اوشو
مکرر به دا دفتر نۀ شي هرګز
* ۳ * ۵۸ *

---

که څوک فخر کا په ننګ او په ناموس
دا په عشق کښے نۀ ارزیږی یو فلوس
که اغوستے ئے زرین لباس وی څه شو
ګنړه یو مرغ زرین دے یا طاؤس

که نه تاج وي په سر اينبي غزا اوشوه
په نظر زما ځمد ځهي ذي يا خروس

نه نقش او فراست وي نه ئے عقل
خالي نقش لکه عکس د معکوس

نه ئے مغز نه دانه وي په خرمن کښې
عبث هسې واړه نولي په سر هوس

د مجاز له ياره طمع د خير مه کړه
تمامي شر او شدت دے يا سا لوس

ودانی ئے همه واړه ويراني ده
راشه اوګوره مانړے بډ دقيانوس

که زما په ګفتګو کښې کم او زيات وي
څوک دِ ګډه کا په دا ښهر کښې جاسوس

ساقي جام د ميو راوړه چه بيخود شم
خدائے دِ مه کړه په خودئ کښې څوک محبوس

که څوک اوغواړي تمامه دنيا واړه
زما يار غوندِ به نه وي بل عروس

رحمان حسن د يار وينی په پرده کښې
نه پټيږی نور د شمعے په فانوس

* ۱ * ۵۹ *

---

اے زما د زړهٔ آرامه راشه راشه
سرو قده ګل اندامه راشه راشه

چه همه واړه خوبان دِ مقتديان دي
د همه واړو امامه راشه راشه

بے تا نشته هيڅ حرمت د عاشقانو
د عشاقو احترامه راشه راشه

خدائے ځزده بيا به هسے وخت وي که به نه وي
زه وبزيږم له ايامه راشه راشه

نن هنګام دے که وفا کړے که جفا کړے
چارے نه شي بے هنګامه راشه راشه

دا جهان د مسافرو یو رباط دے          تلۀ دی تلۀ دی‌له دے کرامه راشه‌راشہ
پری رویه، سنبل مویه، ملک خویه          عنبر بویه لاله فامه راشه راشہ
شپه لا پریږده ونړا ورځ راباندے شپه شوه
د رحمٰن ماء تمامه راشه راشہ

* ۱ * ۶۰ *

بیا مے زړۀ د تورو زلفو مسخر شۀ
چپ و راس مے د حبشو تور لښکر شۀ
هر طرف مے د دعا گذار کړۀ
ولے یو هم داسے نۀ وو چه کارگر شۀ
و هر لورته چه غوږ باسمه غوغا ده
یا نعرے د بیلتانۀ دی یا محشر شۀ
واعظان خو وعظ کاندی بارے څه کا
چه د عشق په لیونو باندے گذر شۀ
چه پدر غوندے وما ته نصیحت کا
په ذیدن د ستا هغه زما پسر شۀ
ستا په در کښے چه پراتۀ دی نیکبختان دی
چه د ستا له دره ووت در په در شۀ
د عشق زخم به څوک څه کندی رحمانه
چه گندوڼے په پرهر باندے پرهر شۀ

* ۲ * ۶۱ *

په دوران مے هسے رنگ دلبر پیدا شۀ
گویا بل د نمر د پاسه نمر پیدا شۀ
یا طالع د زمانے یا بخت زما دے
چه دا هسے رنگ شیرین بشر پیدا شۀ

چه قاصد د ورك يوسف زيرے ہرے وكړۀ
د يعقوب(ع) د ستركو بيا نظر پيدا شي
عشق دے دا كه يو فساد دے نۀ پوهيږم
په جهان كښے چه دا شور و شر پيدا شي
دريغه نخل د عشق نۀ وے زرغون شوے
چه له ښاخه ئے د غم ثمر پيدا شي
ملائك د عشق له غمه څۀ خبر دی
خو هم ما لره دا سخت سفر پيدا شي
يو د ستركو عاشقي بل بے نيازي شوه
په پرهر باندے مے بل پرهر پيدا شي
بيا به روغ د عاشقئے له رنځه نۀ شي
په هر تن كښے چه دغه اثر پيدا شي
د نااهل څوی پلار به څۀ ښادي كا
چه له پشته ئے لئيم پسر پيدا شي
چه هنر و عيب كوی، عيب به هنر كا
د رحمٰن په دور كښے دا هنر پيدا شي
* ۳ * ۶۲ *

هيڅ مے نۀ زده نۀ پوهيږم دا څه ببر شي
چه دلدار مے د اغيار په شكل و څير شي
زمانه مے د رقيب له لاسه وژنی
چه مے سپے كنړۀ هغه راباندے شير شي
د هجران غمونو هسے په عذاب كړم
هغه عمر چه مے لږ كنړۀ اوس ډير شي
چه په تيغ مے لوبے كړے سزا مے داده
بنۀ چه غوښ مے زرۀ د تركو په شمشير شي

تیر ساعت به د هیچا په لاس کښینوزی
اوس به څه وایم وچا وته چه تیر شو
چه مے نوش د هجران پیاله کړه تلخه
د وصال لذت مے ټول زهر ګنډیر شو
چه ئے نۀ په وفا یاد نۀ په جفا وی
جوړ رحمٰن د هغے یار له دِله هیر شو

* ۴ * ۶۳ *

چه نصیب ئے سینه چاک او دل افګار شو
جرس څکه په فریاد او په چغار شو
چه زدا د عاشقئے په عاشق اوشوه
د غفلت له خوبه پاسیدو بیدار شو
عبادت د ریا کار هیڅ پکار نۀ دے
لکه غوك هسے په بحر کښے مردار شو
د جاهل زهد په زهد حساب نه دے
لکه مال په خمر خرڅ د خمر خوار شو
مشقت د نادانانو واړه بوچ دے
لکه بے بارانه آبر تش غبار شو
علمیت د بے عملو عالمانو!
لکه ګنج د کتابونو په خر بار شو
چه ئے کاندی و نااهل ناقابل ته
نصیحت د ناصحانو کوم په کار شو
د رحمٰن کلام په غوږ د بے هنرو
لکه دُر په لاس د طفل هسے خوار شو

* ۵ * ۶۴ *

څهٔ عجب بلند مُقام دے د اخلاص
چه جهان واره غلام دے د اخلاص

که له زمکے و اسمان ته خا تهٔ گران دی
دا سفر په يوهٔ گام دے د اخلا ص

چه خبر که مخلصان له علم غيبه
دا همه واره الهام دے د اخلا ص

د رواج او رسم عُمر مدام نه وی
لکه عُمر چه مدام دے د اخلا ص

بے اخلاصه حلاوت د اسلام نشته
که اسلام دے خو اسلام دے د اخلاص

څهٔ عجب دے که مستان تر چاپير ناست وی
هر ساقی څخه چه جام دے د اخلا ض

څه عجب دے که همایٔ ئے په دام نښلی
هر صياد څخه چه دام دے د اخلا ص۔

پس له مرگه به دا مهرو اخلاص نه وی
که اخلاص کړے نن هنگام دے د اخلاص

د رحمٰن کلام به دا سبب شيرين دے
چه کلام ئے هر کلام دے د اخلا ص

*۱*۶۵*

که به نهٔ کړے به پلے جا باندے غرض
بل به هم نهٔ کا به تا باندے غرض

که گدا د بل په شوق شرض نهٔ کا
سپے به نهٔ کری په گدا باندے غرض

په ساحل کښتئ د هیچا نهٔ ډوبیږی     که څوک نهٔ کا په دریا باندے غرض
خلوتیان په خپل خلوت کښے فراغت دی     د رسوا دے په رسوا باندے غرض
دا دنیا په احمقانو ده ودانه     دانا نهٔ کا په دنیا باندے غرض
زهٔ رحمٰن د عشق په درد کښے هسے خوښ یم
چه مے نشته په دوا باندے غرض

* ۱ * ٦٦ *

---

طمعه مهٔ کړه په دنیا کښے د نشاط     بیا به نهٔ مومی نشاط په دا بساط
لکه راغلے بیا به هسے ځنی دروی     دا جهان د رهروانو دے رباط
تر هر کام لاندې کوهے دے د دے دهر     اېښے بویه هر قدم په احتیاط
و دانا وته به دا جهان ښکاریږی     هم جنت او هم دوزخ او هم صراط
په عاشق به هیڅ دهشت د رقیب نهٔ وی     که ئے نهٔ کړے له خوبانو اختلاط
له کم اصله بےدیانته بے نمازه     طمعه مهٔ کړه د نیکئے د یو قیراط
غم د ترکو تر رحمٰن هسے چاپیر شو
لکه اوسکنړی جامه په چا بخیاط

* ۱ * ٦٧ *

اومه کله دی، پاخهٔ وائی واعظ
هر چه وائی واړه ښهٔ وائی واعظ
چه دے ما له خپله یاره لرے باسی
نور به څه ورته اومهٔ وائی واعظ

جاروانۀ زما له یاره ډېر مشکل دی
زیـاتی څلـبه دویـاره وائی واعظ
په خوږو پښتو خبرو نے غلط شوے
دا خواږۀ خواږۀ تراخۀ وائی واعظ
څوک به څه باور ددۀ په نصیحت کا
چه له یاره جاروانۀ وائی واعظ
زۀ بے عشقه بل یو کار کولے نۀ شم
ډېر له عشقه تښتیدۀ وائی واعظ
اعتبار نے په نرمئے په کرمئے نۀ کړه
دا تاؤدۀ تاؤدۀ سارۀ وائی واعظ
آوریدونکے نے رحمٰن د ویل نۀ یم
بهتر دا دی چه نور نۀ وائی واعظ

* ۱۶۸ *

---

په تندی چه آتش بل کړۀ مدام شمع
څکه بیاموندۀ له خلقو اکرام شمع
په انوار نے منور اهل ابصار شو
لا به کله شی بنکاره د انعام شمع
پتنګان دِ لور په لور تر مخ څرخیږی
څکه نۀ کوی په سُول کښے آرام شمع
وسیزه تۀ ځان زما په شعلا باندے
کړۀ پتنګ ته په رموز کښے کلام شمع
ستا مجلس د خاصو خاصو سرفرازو
د رحمٰن په شیر نۀ موسی هر عام شمع

* ۱۶۹ *

---

هر یو ګل دا ستا د باغ، روښن تر دے تر چراغ
روښن تر دے تر چراغ، هر یو ګل دا ستا د باغ
ستا د باغ د بنړو زاغ، په نظر زما هما دے
په نظر زما هما دے، ستا د باغ د بنړو زاغ
د دردمندو په دماغ، ستا د در خاؤرے عنبردی

ستا د دو خاورے عنبر دی، د درد مندو په دماغ
د عاشق د تټر داغ، په اسمان د عشق آفتاب دے
په اسمان د عشق آفتاب دے، د عاشق د تټر داغ
د رحمٰن د زړهٔ فراغ، نهٔ شی نهٔ شی بے خوبانو
نهٔ شی نهٔ شی بے خوبانو، د رحمٰن د زړهٔ فراغ

* ۱ * ۷۰ *

اورنګزیب او شاهجهان غوندے اشراف
طلاقهٔ شه تر منصور غوندے نداف
که ئے تن په لویئے لوئےوی تهٔ نهٔ ئے څه کړے
مکره خدائے چه کوه طور شی کوه قاف ...
بو الهوس د عاشقئے ته هوس نهٔ کا
دا دروغ دی چه زر دوز شی زر یا باف
د مکے په بزرګئے کښیے هیڅ شک نشته
ولے خر په حاجی نهٔ شی په طواف
که په سل دریابه غسل د ځان وکا
ګمان مکره چه په سپے شی پاک و صاف
کشتئے هم چه ډیره د که شی دوبیږی
د مسرف په ځان بلا شی ځپل اسراف
صابرانو صبر پرېښود حریصان شو
نهٔ څه عدل شته په چا کښیے نهٔ انصاف
دا څلور واړه مذهبه سره یو دی
ما او تا په کښیے پیدا کړو اختلاف
د همه وارو ملکونو څښتن خدائے دے
که جنت دے که دوزخ دے که اعراف
شهیدان نهٔ دی هغه خون فروشان دی

چه خونی ته خون بهٔ نهٔ کا معاف
د کاذب ژبه په خوله کښیے وچه بنهٔ ده
لکه توره د لرگی وی په غلاف
د دیوال په سر به څو زغلی تر کومه
دروغژن چه په دروغه کاندی لاف
آب و تاب د ناکرده مهر وی ههره
څو نظر پرے شوے نهٔ وی د صراف
د دنیا په دولت ناز مهٔ کره رحمانه
دا یو موئے دے په نظر د موئے شگاف
مدح او هجو د حبیب او د رقیب کرم
د رحمٰن نهٔ زده، بل هجوه بل اوصاف

* ۱۷۱ *

---

چه پائے بند شو د لیلیٰ په اشتیاق
مجنون واچــوو و نــورو ته طلاق
چه د مئے و د مطرب په خوند خبر شهٔ
فراموش کــړهٔ صــوفی نفل د اشراق
جام د میٔو دے یا رقص د خوبانوا
په هر ځائے چه و بله جمع شی عشاق
په نســیه وُ نظر نهٔ کاندی بے نقده
که څوک حورے ورته ستائی یا براق
چــه حاصلــه د دلبر یگانگی شی
د دوینی خبرے نــهٔ کاندی مشتاق
حرکت له ځایه نهٔ کا لکه شمع
که ئے اور په سر بلیږی په تارق
خوښ وی هسے د خپل یار په درد و غم کښیے

تهٔ به وائې چه بادشاه دے د آفاق
هسې محو وی د عشق په مئ و ناب کښې
چه خبر نهٔ وی په وصل په فراق
که ظاهر په صورت وی په معنے نهٔ وی
لکه کښلے د "لا" لفظ په اوراق
څو ئے تن په کار و زار کښې فنا نهٔ شی
نـهٔ جـارباسی مخ اسونـه د عراق
د عراق اسونه کار په اشارت کا
په وهل په کوتل کار وی د ایلاق
چه خدائے پوه کړل د بنړو په ځنبل پوه شو
چه پوه نهٔ شو نو پوهیږی په شلاق
که ئے سر ځی که ئے مال ځی خدائے دِ نهٔ کا
د طالب او د مطلوب تر منځ نفاق
د قسمت پاڼی به لاس نیولے ناست یم
نهٔ پوهیږم چه به جفت شی که به طاق
تهٔ چه پند وائے ناصح و رحمٰن ته
کاشکے نور کړے هغه کښلی د میثاق

* ۱ * ۲ے *

---

تهٔ ناحق په ما کینه کړے کینه ناک
په کینه به آئینه نهٔ کړے تهٔ پاک
څوک بے وجهے چاته توره تیره اخلی؟
خپل عمل دے چه دنیا ئے کړه هلاک
چه خندا ئے د بلبل په آه سرد کړه
خدائے د ګل ګریوان پاره کړ سینه چاک

څکه سپينې شوې اول د حباب سترګې
چه له بغضه په درياب کښې چوی تړاکـ
که تن زمکه کړی، زرۀ تخم، باران اوښکې
لکه نخل په سر اوکاږی له خاکـ
بالا دست به شی هالهٔ په نورو ونو
که تعليم د زير دستئے واخلی له تاکـ
بيا به نهٔ موسی د ترکو واک و حکم
څو ونه‌وزی د درست جهان له واکـ
د هغه جهان ژوندون به هالهٔ موسی!
چه لاس اوکاږی د دے جهان له ژواکـ
تهٔ چه ژغورے سر و مال په عاشقئے کښے
عاشقی دا هسے چرے ده، کاوِکـ
چه دا هسے لوئے ميلمه تهٔ کور ته بيائے
اول غولے پاکيزه کړه له خاشاکـ
په دوهئی کښے به ورنهٔ شے تر توحيده
څو ضمير دِ خالی نهٔ شی له اشراکـ
دا همه واړه حجاب دی چه ليدهٔ شی
نور دِ حسن بالا تر دے له ادراکـ
په ظاهر لباس غلط د سړی مهٔ شه
منعمٌ نے ګوره له چغزی او له متاکـ
اولياء په جهان څکه څرګند نهٔ دی
چه پاک روئ پټه و سر نغاړی له ناپاکـ

هيڅ وفائے لـه هيچـا سره او نهٔ کړه
ترو رحمن به څه مانه کړی له افلاکـ

*۱*۷۳*

که په ګنج د شاهئے فخر شهر یار کړ
عاشقان ئے د دلبرو په رخسار کړ
خرقه پوشو په خرقه کښې دے موندلے
هغه حظ چه په دنیا کښې دنیادار کړ
پتنګانو لره خدائے ورکړهٔ په اور کښې
هغه عیش چه ئے بلبلے په ګلزار کړ
نیک ساعت په بد بدل د هیچا مهٔ شه
په وصال کښې غم د هجر ور دوچار کړ
نن د ګور او د مور یو دے په معنیٰ کښې
خو په چا ئے تور لحد په چا بازار کړ
د پیرئے په دوییدو چه رب راضی شی
بیا ملاح د زړونو ګله هلته کار کړ
هغه مخ چه مادرزاد ښائسته نهٔ وی
مشقت د مشاطے واړه مردار کړ
یار د ناز له خوبه پاسی پسے ګرځی
چه فلک د عاشقانو بخت بیدار کړ
نیمه شپهٔ ئے یار تر سره پورے کښېنی
لکه شمع چه څوک بله په مزار کړ
د مستئے د هوښیارئے یون څرګند دے
په هر چا کښې چه څه وی هسے رفتار کړ
د بلبلو نغمه زاغ کولے نهٔ شی
هر سرود آواز په طور د خپل تار کړ

رحمٰن هسے بیوقوف سوداګر نهٔ دے
چه د دین متاع بدله په دینار کړ

* ۳ * ۲ *

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه ک‍ړ
چه قضا شي وردوځار حکماء څه ک‍ړ

مورو پلار خونيک فرزند له خدايه غواړي
چه بخت بد شي ادے څه کا بابا څه ک‍ړ

يار له ياره په لوړ لاس کله ييليږي
چه لاس نه رسي يار څه کا آشنا څه ک‍ړ

په پيرو په دعا څه شي کړونے خدائے دے
چه خدائے نه کا پيرے څه کا دعا څه ک‍ړ

بخت په زور او په زر نه دے چا خپل کړے
په دا کار کښې ناتوان څه کا توانا څه ک‍ړ

اے رحمانه پتنګ عذر شه چه وسو
نور د شمعې خندا څه کا ژړا څه ک‍ړ

* ۷۵ * ۳ *

هغه څوک چه ميان وی څه به خوب ک‍ړ
چه فرهاد غوندے کوه کن وی څه به خوب ک‍ړ

هر نفس د سړی تلله دی لــه جهانه
چه ئې هر نفس رفتن وی څه به خوب ک‍ړ

چــه صبــا له خپله ياره جدا کيږی
که د سلو شپو کړمن وی څه به خوب ک‍ړ

عاشقي ده خدائے له اوره پيدا کړے
چه په اور کښې ئې وطن وی څه به خوب ک‍ړ

د رقيب له جوره خوب د عاشق نه شي
د هغو چه يار دشمن وی څه به خوب ک‍ړ

خوب خندا په بے غمئې کيږی رحمانه
هر چه تا غوندے غمژن وی څه به خوب ک‍ړ

* ۷۶ * ۴ *

چه په سترګو کښې ئې خار وی څه به خوب ک‍ړ
چه په زړه ئې غم د يار وی څه به خوب ک‍ړ

خوب له یاره سره هم د عاشق نهٔ شي
چه ئے یار په بل دیار وي څه به خوب کړ
په دنیا کښې خوب هغهٔ کا چه نادان وي
هغه څوک چه هوښیار وي څه به خوب کړ
کوم طالب مطلوب موندلے دے په خوب کښې
هغه څوک چه طلبګار وي څه به خوب کړ
دیدار نهٔ دے چا په پټو سترګو کړے
چه مطلب د چا دیدار وي څه به خوب کړ
بله لار د مرګ له لارے ګرانه نشته
چه په خوا ئے هسې لار وي څه به خوب کړ
هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دے
هر چه غوږ په ذوالفقار وي څه به خوب کړ
زهٔ رحمٰن د یار بنده او خدمتګار یم
چه بنده او خدمتګار وي څه به خوب کړ

* ۵ * ۷۷ *

هغه څوک چه بے یاره محبت کړ
همګی واره بے ځایه محبت کړ
محبت بے خدایه واره د زړهٔ رنځ دے
که مدام له چنګ و نایه محبت کړ
خر خاری ده چه ئے یو له بله کاندی
هر خود رائے چه له خود رایه محبت کړ
نتیجه ئے ریش کنده جامه پاره وي
آدم زاد چه له چارپایه محبت کړ
هغه سرائے لره به تلهٔ ورباندِ ګران وي
هر سړے چه له دے سرایه محبت کړ
بوالهوس به نهٔ پتنګ و پروانه شي
د مګس په څیر له ورایه محبت کړ
چه د تورو زلفو سورے په چا اوښي
شغه کله له همایه محبت کړ
رحمٰن ځکه د رهبار متابعتٔ کړ
چه رهرو له رهنمایه محبت کړ

* ٦ * ۷۸ *

زړهٔ مې تراشي د بنړو په تیرهٔ نوک
ماته وی مې دو دیرش غابښ واړه په څوک
په غمزو د تورو سترګو یم وژلے
ژوبل ژوبل پروکے پروکے یم توک توک
که نارے وهم که خاورے په سر نولم
ناروا شه که پروا لری یو چوک
لکه ګل چه څوک د طفل په لاس ورکا
هسې رنګ دِ زما زړهٔ کړو شوک په شوک
د اسمان په نیلي سور لکه آفتاب شي
د زربفتو دستار کیږدی په سر هوک
که له ډیره درد و غمه مې زړهٔ اوچوی
ورته هیڅ دی زما درد و زما دوک
دوست جهان ئے په غم ډوب کړهٔ سر تر پایه
که ګدا دی د دے دهر که ملوک
که انصاف لریٔ په زړهٔ کښیے منصفانو
راشئ ګورئ د دلبرو دا سلوک
زهٔ به ولے د خپل یار ثنا نهٔ وایم
چه سحر سحر نارے وهی تل غوک
چه میئن د دلبرانو په جمال شوے
اے رحمانه ځان ورژاړه کوک په کوک

* ۹ * ۷ *

د بے دردو همدمی به دِ بے درد کړ
د نامردو همدمی به دِ نامرد کړ
صحبت بے تاثیره نهٔ دے دا حدیث دے
کنکو نمرے هم په څیر د کنکو زرد کړ

هر کاڵے چه څوک په زمکه باندے کیږدی
هغه زمکه ئے له جنسه د خپل کړی کړ
په مجلس د ویر ژړلو څوک ور مهٔ شه
که صحیح که سلامت وی آه سرد کړ
چه ډوبی له میانه لرے شی رحمانه
معشوقه عاشق په خپله ناز پرورد کړ

* ۸ * ۸۰ *

چه مشغول نهٔ وی د ترکو په جمال څوک
نور به څه کا په دنیا کښے اشتغال څوک
چه ئے قیل و قال د یاره سره نهٔ وی
له نور چا سره به څه کا قیل و قال څوک
د بل خط په عبارت به نظر نهٔ کا
چه نظر اوکاندے ستا په خط و خال څوک
چه په اصل کښے خدائے نهٔ دے پیدا کړے
ترو به څه غواړی دا ستا د مخ مثال څوک
نور خوبان دی ستا تر مخه پورے هسے
لکه بل کا د اقتاب په مخ مشال څوک
چه عنقا شو اهل دل په دا دنیا کښے
ترو به څه وائی و چا وته احوال څوک
که عاشق په عشق کښے ژاړی هیڅ ګرم نهٔ دے
په دا هسے درد کښے نهٔ لری مجال څوک
سرخروئی د هر سړی په جګر خون ده
نهٔ هغه چه په سر اچوی سور شال څوک
مخ رونړی ده د عاشق په خپلو وینو
په دا نهٔ شی که ئے سړی په رومال څوک

سړے بویه ښځا په نیک عمل ناز یږی
نۀ چه ناز کا د دنیا په ملک و مال څوک
د دنیا چارے فانی دی مرد هغه دے
چه نظر کا په حرام او په حلال څوک
هر چه کر کا د اوربشو غنم غواړی
له خاطره دِ بیرون کا دغه خیال څوک
که ئے شعر د رحمٰن مهمند تر غوږ شی
غوږ به نۀ باسی په شعر د خوشحال څوک

* ۹ * ۸ : *

په ښائست زما د یار نۀ دی خبر څوک
که خبر شی پرے به نۀ ږدی دغه در څوک
د دنیا چارے همه واړه فانی دی
نو ناحقه خاورے نولی په خپل سر څوک
چه قبول شی په درګاه د مهرویانو
د هغۀ په څیر به نۀ وی بختور څوک
که زما د یار په مخ د چا نظر شی
وو به نۀ کاندی بل خوا وته نظر څوک
د دیدن طاقت ئے هیچا څخه نشته
و آفتاب ته کتے نۀ شی برابر څوک
که هر څو دلبران ډیر دی په دنیا کښے
بل به نۀ وی زما یار غوندے دلبر څوک
عاشقی یوه پایه ده عجا ئبه
دغه کار کولے نۀ شی هم هر هر څوک
له هجرانه بله سخته بلا نشته
خدائے دِ نۀ کاندی زخمی په دا نشتر څوک
مخ به بل خوا ته هرګز او نۀ جاړ باسی
چه شی ستا په خمارو سترګو اېتر څوک

او به نه رسیږی تا ته به آسانه
ستا په غم چه خاوړے نه کاندی په سر څوک
ارمانونه به کوی زار زار به ژاړی
چه حاصله کوونته نه کا په ششدر څوک
همره نوم د عاشقئے ورباندے مه ږده
چه د یار په غم کښیے نه شی قلندر څوک
هغه نه کاندی نظر و سیم و زر ته
چه په لور د خپل اشنا کاندی نظر څوک
په گلونو د گلزار به میل نه کاندی
چه خوبونه کا د یار په خاکستر څوک
بے رهبره یون د عشق په لارے گران دے
دلته بویه چه پیدا کاندی رهبر څوک
چه پیلتون په سترگو وینی اشنائی کا
د رحمٰن په څیر به نه وی بے هنر څوک

* ۱۰ * ۸۲ *

چه علاج کولے نه شی د قسمت څوک
تر و به څه وائی و ما ته نصیحت څوک
غم د ما په ځان پیرزو دے بارے څه کا
چه د خدائے په کړه کښیے نه لری طاقت څوک
هغه چارے چه موقوفے په تقدیر دی
کړے نے نه شی په محنت په مشقت څوک
که نظر کا و قضا و هم رضا ته
په هیڅا باندے دِ نه کا ملامت څوک
د مطلوب جفا وفا واړه هنر دے
څه پوهیږی د حکماؤ په حکمت څوک

د ابلیس و ریاضت ته دِ نظر کاَ
چه غرور کا په طاعت په ریاضت څوک
علت لاړ شي عادت نهٔ ځي له سرې نه
خدائے د نهٔ کاندی په بده چار عادت څوک
زهٔ رحمٰن د بیلتانهٔ سیلاب یم اوړے
که لاس را کاندی د خدائے په محبت څوک

* ۱۱ * ۸۳ *

---

زغره، واغونده ملا اوتړه په جنګ
دغه پسه معرکه کوه د ننګ
و بے ننګ وته د ننګ خبرے مهٔ کړه
یا ځان وګنړه په خپلو وینو رنګ
ننګیالی چهٔ یو ځل مخ کا په یو اوری
نور هیڅ نهٔ وینی کومے وی که کړنګ
هیڅ له ځانه له جهانه خبر نهٔ وی
چه چراغ په نظر کیوزی د پتنګ
د بلبلو و چمن ورته پرواز وی
سمندر کا مدام اور ورته آهنګ
که جهان و بے هنر ورته فراخ وی
یو لحد دے هنر مندو اره تنګ
هغه ښهر جوهری لره زندان وی
چه یکسان وی پکښے لعل و مردار سنګ
آسمان زمکه دواړه ژامنے د نهنګ دي
څه به زیست کا څوک په خولهٔ کښے د نهنګ

په ښادئ کښې هيڅ ښاد مشه که دانا يې
غم ښادي دي د دې دهر ځنګ په ځنګ
که رحمٰن د هغو تلليو وصال موي
تير به نۀ کا په دا دور کښې يو درنګ

* ١٢ * ٨٤ *

هسې نه چه زما يار واړه جفا کا
صد چندان لکه جفا هسې وفا کا
لکه زۀ چه په خپل يار باندې مين يم
يو په سله همره يار مينه په ما کا
زړۀ يې اوړې په احسان دې نه په جور
مجنون څکه په ليلي پسې ژړا کا
درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دې
نه يوازې دغه ناز په ما او تا کا
نه به ګوري رحمٰن څشکل هغه مخ ته
فرښتې چه يې د حسن تماشا کا

* ١٣ * ٨٥ *

---

ايښې مې په سر دې ستا د مخ د مينې ګل
ته چه آئينه په لاس کښې واخلې خيرانيږې
ګرځي بچمن کښې منګل د که وري د ګلو
هم مې مښک ليدلي هم عنبر دي پچهانکښې
نۀ به ستا د مخ په څير ګلشن وي چا ليدلې

بيا مې تور ليمه دی ستا د زلفو تور سنبل
زۀ له کومه راوړم صبوري او تحمل
خدای دې زده چه ګلونه وري که زرونه پمنګل
شاباش شاباش شاباش ستا په زلفو په کاګل
نۀ به وي زما په څير لا هو نه د بلبل

هسې تغافل کا ستا په جور و په جفا کښې
خلق حيرانيږي د رحمٰن په تغافل

* ١ * ٨٦ *

هیځ یې نهٔ کړهٔ په دا عمر کښې حاصل
هسې پاتې شوم مردود و ناقابل
ما لا بوئ هم د وصال موندلې نهٔ دے
تش په توره یې خدائ نوم کړهٔ د واصل
هسې ډوب یم د ګناه په دریابونو
چه په سترګو یې او نهٔ لیدهٔ ساحل
له وطنه یې په هر زمان اوباسی
رقیبان ئے را پسې کړهٔ محاصل
که بلا ده که جفا ده که وفا ده!
دا همه واړه په ما کړهٔ خدائے نازل
د دنیا په پلیتئے یې ځان پلیت کړو
حیف دے دا چه نهٔ عالم شوم نهٔ جاهل
توره ویره یې شوه سپینه زهٔ حیران یم
چه رحمٰن لا نهٔ بالغ شوم نهٔ عاقل

* ۲ * ۸۷ *

مهٔ غوږ باسه د نا اهل قیل و قال
ښکار نهٔ دے قیل و قال د بد سګال
یا به فخر په خپل اهل په نسب کا
یا به فخر کا د مال او د منال
یا به هسې پوچ ګوئی کاندی آغازه
چه مضمون ئے نهٔ مردار وی نهٔ حلال
د دانا او د نادان صحبت وی هسې
لکه ګډ شی ویله لعل د کوتی لال

لکه لعل و کوتي لال چه وباله ګډ شي
یا صحبت شي د عیسیٰ او د دجال
هغه عمر چه تیریږی بې هم جنسه
ترو به څه وی د هغه عمر احوال
د دنیا چارے فاني دی مرد هغه دے
چه خبر شي په ثواب، او په وبال
آب د سیند لا څه مجال لری په تلل کښې
د دنیا د چارے هیڅ نۀ وی مجال
د دنیا چارے په مثل خواب و خیال دے
څوک به څه کا اعتماد په خواب و خیال
لکه مال و ملک په خوب کښې ور څرګند شي
خو چه ویښ شي نۀ ئے ملک وی نۀ ئے مال
لکه زګ چه د اوبو په سر لیدۀ شي
که ئے واخلي هیڅ ور نۀ شي په چنګال
لکه دود چه غرونه غرونه څرګندیږی
تار په تار شي په یوۀ نری شمال
لکه یخ چه د سرو په زور شي جمع
هیڅ ئے نۀ وی د آفتاب په مخ مجال
په یوۀ ساعت ئے ساز بیا ئے ویران کا
خاورے ختې دی په لاس کښې د کلال
د مجاز په معشوقه کښې وفا نشته
ما هزار ځله وکښلے دے دا فال
اعتماد ئے په بنادۀ او په غم مۀ کړه
نۀ ئے هجر په قرار دے نۀ وصال
ګاه ئے تور کاؤدے په مخ باندے را کیښ شي
ګاه ئے راکیښ شي په مخ باندے رومال

لکه مالګه چه څوک کیږدی په اوبو کښې
زهٔ هم هسې سرزده یم په مثال
چه د مرګ و تاخت و باخت وته نظر کړم
صورت وینم د میږی په څیر پائمال
که وصال مې د یار بیا مونده هله سیال یم
ګنړه نهٔ یم زهٔ رحمٰن د هیچا سیال

* ۸ * ۸۸ *

---

ژوبل ژوبل د خوبانو په نګاه یم
لا تر دا نه زینت غوځیږم چه پناه یم
چه یوسف (ع) غونډې هزار پکښې پراتهٔ دی
بندیوان د هغه سیب ذقن په چاه یم
چه ئې قد و قامت اووینم په سترګو
عندلیب په سهی سروې د خپل آه یم
د سپین مخ د تورو سترو له رغبته
منت بار د هر سفید او د سیاه یم
د رقیب خبرې ورم د یار د پاره
دعا ګوئ هم د نیک خواه هم د بد خواه یم
بناخ د زلفو ئې په خپله خدائې را تیت کهٔ
ګنړه زهٔ د یار تر قد پورې کوتاه یم
بې له عشقه که مې عیب که مې هنر دې
نهٔ خبر په عبادت نهٔ په ګناه یم
ځان هر ګوره تا آګاه را څرګندیږی
له هغې ورځې را هسې چه آګاه یم

بے صبری د یار په وصل کښے مهجور کړم
د پسرلی په مرغزار کښے اوچ ګیاه یم
له اوله تتر اوو هم بیا آه کړم
په نارو نارو خروس د صبحګاه یم
په جذبو جذبو ئے را کښبومه ځان ته
هغه یار مے کهربا دے زه ئے کاه یم
لکه بار د اوښ پوخ شی ځنے رژی
زه هم هسے یار ترلے سربراه یم
اوس مے ځائے په دا جهان کښے پاتے نه شو
خوزیدلے تر چهل او تر پنجاه یم
د رقیب علاج آسان دے بلا دا شوه
زه رحمن له خپله یاره نا ویساه یم

* ١ * ٨٩ *

که مے ښوک په فقیریٔ شمیری فقیر یم
که مے ښوک په امیریٔ شمیری امیر یم
د دلبرو صدقے لره ئے غوارم
هسے نه چه په دنیا پسے زهیر یم
د خرقے خدمت مشکل دے او که نه وی
زه هر دم و دغه چارے وته خیر یم
هم پند اخلم هم پند وایمه هرچا ته
زه د ښینو یم مرید د ښینو پیر یم
په هجران کښے خیال د یار واسره مل دے
په زندان کښے د یوسف (غ) سره اسیر یم
په خندا کښے مے ژړا ده لکه شمع
له عالمه پټ پنهم د ځان په ویر یم

آزادي تر دا په ځور ته بله نشته
چه بندي د يار د زلفو په زنځير يم
چه هميش په غوږ نارے د هجران آورم
رحمان ځکه د خپل يار و مخ ته ځير يم
خوشحالا او دولتا مے غلامان دي
زۀ رحمان په پښتو ژبه عالمګير يم

* ۲ * ۹۰ *

خبر نه يم چه ئے راوستم له کومَ
بيا مے کوسے خوا ته استوي چه دروم
لکه روند چه لاس د بل په اوږه کيږدي
هيڅ ژوره لوړه نۀ وي ور معلوم
خدائے راپيښه نرئے لار کړه نا ليدلے
لکه وزانه ماشوره چه وي سرګوم
خراب زړۀ مے تورو زلفو ته هوس کړي
بارے کيوت د مارغۀ په ځير په لوم
هسے کودے عاشقئے را باندے اوکړے
چه سنګين خاطر مے نرم شو تر موم
چه ئے هيڅ له خدايه ترس او ويره ته شي
الغياث د دلبرانو له رسوم
کله را کاندي شراب د لعل و لبو
کله جام د زهرو را کاندي چه شوم
د مطلوب له طالبانو چه ځان شميرم
اے رحمانه اول ميال شه بيائے موم

* ۳ * ۹۱ *

زۀ يو دم دا ستا له غمه بے غم نۀ يم
بے غم ستا له ذکره فکره يو دم نۀ يم
هر زيارت لره چه ځمه مراد مے نۀ ئے
زۀ زائر د بتخانے د حرم نۀ يم
ستا د در په تورو خاورو باندے خوش يم
بے تا خوش په تماشا د ارم نۀ يم
چه دا ستا په تماشا يم خبر شوے
نور خبر په تماشا د عالم نۀ يم
بل دا ستا له زيبا مخه و بل مخ ته
منتظر د بوے ستنے تر سم نۀ يم
که دا ستا د بنګلی مخ عاشقان ډير دی
زۀ په واړو کښے اول يم دويم نۀ يم
که له غمه دِ وو نۀ مرم، هاله وايه
چه يا ديو يم يا دواب يم آدم نۀ يم
زړۀ مے ستا په غمزو غوڅ دے غزا اوشوه
که په لاسو په پښو روغ يمه ګرم نۀ يم
سم قامت لکه الف يم په راستئے کښے
لکه غشے زۀ فساد لره سم نۀ يم
خم د زلفو يم محراب د ګړو وروځو
زۀ د مارو د لرم په څير خم نۀ يم
کم و بيش که مے له لاسه واقع کيږی
يم سړے شکم لرم بے شکم نۀ يم
زۀ رحمٰن د بيلتا نۀ له غمه ژاړم
واقعه ده ډيره ګرانه هيڅ ګرم نۀ يم
* ۹۲ * م *

په يوه غمزه د سترګو ئې فنا شوم
سر تر پايه بې بنياده بې بقا شوم

ما له يار له غمه دم وهلے نۀ دے
که مې دم وهلے نۀ دے هم رسوا شوم

بڼۀ چه تن مې تو‌ے تومنه شو په عشق کښې
هاله څاڅکے د شبنم ووم اوس دريا شوم

زۀ د يار و مخ ته ګورم يار و ما ته
چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم

په هجران کښې که ګدا ووم کند په غاره
په وصال کښې ئې باداشاه د امرا شوم

بادشاهي د ګدايانو په دعا شي
زۀ رحمٰن ځکه بادشاه يم چه ګدا شوم

* ۵ * ۹۳ *

زۀ له دے دنيا نه تلونے په شتاب يم
لکه پاڼره د خزان پښه په رکاب يم

که هزارے آبادئ ګرم په جهان کښې
غرض دا چه نهايت خانه خراب يم

که مې اصل د حياتو د اوبو دے
بيا خو دا چه د اوبو په سر حباب يم

دا جهان قصاب خانه کړه خدائ و ما ته
يا بسته ولاړ په غولى د قصاب يم

چه د خدائ له معرفته خبر نۀ شوم
معلومېږي چه يا ديو يم يا دواب يم

که صورت یې د سړی دے زۀ نے څه کړم
په معنیٰ کښې د چارپایو په حساب یم
لکه بت چه په رنړو سترګو اوده وی
هسې زۀ په بیدارئ کښې اوړ خواب یم
په طاعت په عبادت مې زړۀ یخ نۀ کړو
همیشه د معصیت په اور کباب یم
سر د خدائے و عبادت ته ایښوے نۀ شم
مدام ډوب د ګناهونو په دریاب یم
چه و خپلو ګناهونو ته نظر کړم
سزاوار د هر سزا د هر عتاب یم
لکه څوک چه په خر سور وی مخ ئے تور وی
زۀ هم هسې تر څښتن پورے بے آب یم
غزا اوشوه که ګفتار کوم په ژړه!
زۀ رحمٰن چه کردار نۀ لرم کذاب یم

* ۹۴ * ٦ *

زۀ دا هسې دیوانه او مجنون چا کړم
له رواجه له رسومه بیرون چا کړم
نۀ پوهیږم چه دا چارے په ما څوک کا
لیونے د خپل نګاه په افسون چا کړم
کوږے سترګے کوم بانړۀ کومه غمزه ده
ډوب شهید غوندے په خاک و په خون چا کړم
توان توفیق خو د فتنو راڅخه نۀ وو
په فتنو د تورو سترګو مفتون چا کړم
رحمٰن هیڅ له خپله ځانه خبر نۀ یم
چه دا هسې رنګ زبون و محزون چا کړم

* ۹۵ * ۷ *

تر هغه حده به هورته بد سړے شوم
چه د درست جهان په سترګو کښې اغزے شوم
دنيا واړه ځبله زيست او روزګار کاندی
خو يو زۀ په دغه بار کښې ګوډ لړګے شوم
تماوی جهان لمن راڅخه نغاړی
سپين زړوکے مے اغوستے تور کودے شوم
هيڅ حاجت د هنر نشته و نصيب ته
غزا اوشوه که مهمند که داوزے شوم
د نوح ځوئ هم د نيک نيکۀ نسے وو
ګنړه زۀ هم د يو نيک نيکۀ نسے شوم
کل وسواس له احتياطه پيدا کيږی
زۀ له ډيرے هوښيارئے نه ليونے شوم
اوس عطا د آدميت راباندے اوشوه
چه رحمٰن د هغه يار د کوڅے سپے شوم
* ۸ * ۹۶ *

که مے اونماځې ساقی په يوۀ جام
تر دا هورته به نور څه وی احترام
ښۀ دے ما لره دا فيض د شرابو
چه ړړے اووينځم دا دلق ازرق فام
مئے خواری که په عالم کښے بد نامی ده
ما تر هيڅو دے لاندے کړے ننګ و نام
په ميزان کښې يو سر لعل بل سر کانړی
مساوی د عاشقئے په خاص و عام
عاشقان د سپين رخسار د تورو زلفو
څه پروا لری د کفر د اسلام

په مجنون باندے قلم راغلے نه دے !
که حلال ئے په مخ ورشی که حرام
حلال عشق دے په رحمٰن باندے راغلے
په حلالو کښے مدام وی احترام

* ۹ * ۹۷ *

د هجران له ډیره غمه ولے نۀ مرم
له دے هسے رنګ ماتمه ولے نۀ مرم
چه یو یار له بله یاره جدا کیږی
د دے دهر له ستمه ولے نۀ مرم
یار چه یار په سترګو نۀ وینی خو مرګ دے
ترو زۀ بے له خپل صنمه ولے نۀ مرم
چه په هر سحر زما په ژړا خاندی
له دے هسے صبحدمه ولے نۀ مرم
چه په لیږه ګرمئے شا کاندی و ګل ته
له دے بےوفا شبنمه ولے نۀ مرم
چه د مرګ خواری په خوا لرے رحمانه
لا پخوا تر دغه دمه ولے نۀ مرم

* ۱۰ * ۹۸ *

اعتماد به په دنیا کوے تر کومَ — دا رفتار به پس شا کوے تر کومَ
څو به پټ له مرګه ګرځے سپینه ږیره — په روښانه ورځ به غلا کوے تر کومَ
چه د دهر له یارانو وفا غوارے — صیادی به د عنقا کوے تر کومَ
د پیرئے علاج په ډانګ په لوړ نۀ شی — دغه کار به په عصا کوے تر کومَ
نۀ چه پند واﺋے ناصح و رحمٰن ته
شکایت به د قضا کوے تر کومَ

* ۱۱ * ۹۹ *

و محمود وته نظر کوه مدام — چه غلام کړو خپلے مینے د غلام

نه نیکانو مدعا خو نیک عمل وي ساعت نه ګوري که صبح وي که شام
چه د زړه حضورې نه وي په نمانځه کښې پکار نه دے مقتدي وي که امام
چه مجنون غونډې په مینه کښې صادق وي رحمان وائي په هغه باندے سلام
هم نغمے کاندي، هم رقص کا، هم خاندي
د رحمٰن په شعر، ترکے د باګرام
* ۱۰۰ * ۱۲ *

هسے تیز دورومي دوران ګویا برق دے درخشان
د آسیا په څیر ګردش کا په زمین باندے آسمان
ککرے دي د سر بو چه اوریږي تر دا میان
پیدا کیږي فنا کیږي نه ئے حد شته نه پایان
نه ئے حد نه ئے پایان شته نه ئے سر شته نه سامان
څنے دول وهي ښادي کا څنے ویر کا د خپل ځان
څنے شمع غونډے ژاړي څنے ګل غونډے خندان
که ئے ګورے بو ګلشن دے که ئے ګورے بو زندان
که ئے ګورے بو ګلزار دے که ئے ګورے و بیابان
بوه هسے تماشا ده چه ئے هیڅ نشته بیان
کیفیت ئے مونده نه شي په دلیل او په برهان
چه ئے کومه خوا رفتن دے یا ئے چرته دے مکان
خدائے خبر دے په دا علم
هیڅ خبر نه دے رحمٰن
* ۱۰۱ * ۱ *

ډیر یاران وو د ګل خان او جمال خان
پکار نه شو یو په وخت د زارستان
د همه وارو یارانو مخ د تور شي
که په څوک و بله یاري کا په دا شان

چه یو یار په سوری پروت وی بل په اور کښیے
و هغو ته به څوک څه وای یاران

هیڅ تعریف ئے په دا ژبه وایه نهٔ شی
صد رحمت شه په یارانے هم د گل خان

په دا هورته د یارئے شرطونه څه وی
چه په اور کښیے دواړه اوسوزی یکسان

چه له آل له اولاده سره اوسول
خدائے دے نهٔ کا څوک دا هسے مظلوسان

چه په اور کښیے یو د بل د پاره سوزی
ما لیدلی نهٔ وو هسے مخلصان

څه رنګ شوخ وو هغه اور او هغه خلق
چه ئے مړ نهٔ کړو د اوښکو په باران

الغیاث دے الغیاث دے الغیاث دے
چه انسان کا هسے ظلم په انسان

د نمرود چارے مے اولیدے په سترګو
چه ئے اچول و اور و ته نبیان

هم دے زمکے دے آسمان ته تعجب کړم
چه نهٔ زمکه په ناړو شوه نهٔ آسمان

هم دے لویو لویو غرونو ته حیران یم
چه اونهٔ لوېښتهٔ له ویخه سر غلطان

له دے خپله سپیه نفسه مے زړهٔ بد شو
چه اوبهٔ څښی یا خوارهٔ خوری په جهان

عالم وائی چه قیامت به په جمعه وی
ولید ما په یکشنبه په دا دوران

هزار حیف دے چه دا هسے رنګے چارے
واقع کیږی د دنیا په سوذ و زیان

په عیسیٰ(ع) او په دجال کښې ګناه نشته
دا مکرونه دي د نفس و د شیطان

عزیزان نے ځپله ووژل په خپله
دا همه واړه تقدیر دے د سبحان

هسے نه چه داڼے وکړۀ نور به لکړی
چه نے زړۀ شي هغه کاندی بادشاهان

شاه عالم اعظم اوګوره چه نے ځنګا کړۀ
په خونونو واړه ملک د هندوستان

و دارا او اورنګزیب وته حیران یم
چه نے څه چارے واقع شوے تر میان

د حسن، حسین (رض) غزا دِ څوک په زړۀ کا
چه همه واړه په تیغ شو شهیدان

د دوئ غوښې، اوښکو وینو رغړولے
بے حسابه هسے خلق شو طوفان

هر چه اهل د دنیا دی حال نے دا دے
که سړے دے که پیرے دے که حیوان

آدم زاد په زمکه یو بل سره وژنی
په دریاب کښې وبله غوښی خوری ماهیانِ

لکه غوښے چه ماهیان خوری په دریاب کښې
په هوا کښې هم دغه کاندی مارغان

خزنده او پرنده دی د دے دهر
همه واړه یو تر بل مشت و ګریوان

مرداری د دے دنیا خو هم دغه ده
ځکه پیرته ځنے ګرځی درویشان

مکاری د زمانے څه همره نۀ ده
چه رحمٰن نے چاته وکاندی بیان
* ۱۰۲ * ۲ *

دنیادار د دنیا کار کا زۀ د دین
خوانین زما په سنگ دی خوشه چین
هیڅ کم نۀ دے تر سپین مخ د دلبرانو
بلکه بنـۀ دے زما شعر نمکین
مراد له تورو سپینو واره دلبری ده
موقوف نۀ دے دغه کار په توروسپین
مرتبه د سلیمان چه چا له ورشی
هیڅ پوره نیگرے نۀ وی په نگین
چه رنگین رنگین مضمون پرے کښلے نۀ وی
څه پکار دے د بیاض ورق رنگین
خوند په خوله دے نۀ په څکه نۀ په خوراۀ دے
آب ر خور که د چا تلخ وی که شیرین
غرض خوب دے که په خس وی که په خاؤرو
څه حاجت دے په بستر ر په بالین
مصرے توره هم په بد غلاف کښیے زنگ شی
خدائے څوک نکړه د بدانو همنشین
څه عجب که په وږخ مهر په شپه ماه شی
رحمٰن آشنا چنان دے هم چنین
* ۱۰۳ * ۳ *

---

له نظر کا څوک په کار د درویشانو
خود به اووینی وقار د درویشانو
په دغه لارے به ورشی خدائے رسول ته
که څوک یون کاندی په لار د درویشانو
هر گفتار به ئے د خدائے په در قبول وی
چه قبول ئے وی گفتار د درویشانو
هسے گرم بازار بل په جهان نشته
لکه گرم دے بازار د درویشانو
په یوه قدم تر عرشه پورے رسی
ما لیدلے دے رفتار د درویشانو

همره خلق به ئې زيارت کا پس له مرګه
چه بازار وی په مزار د درويشانو
بادشاهان د دے دنيا واړه پراته وی
لکه خاورے په دربار د درويشانو
هر بهار لره خزان په جهان شته دے
خزان نۀ لری بهار د درويشانو
د جنت د باغ ګلونه به ئې هير شی
که څوک اووينی ګلزار د درويشانو
چه دنيا ئې کړه د خدائے د پاره ترکه
صد رحمت شه په روزګار د درويشانو
د قارون و حال ته ګوره حال ئې څه شو
راشه مه کوه انکار د درويشانو
به هر چا چه د غضب اينده کا کښه
خطا نۀ دروی ګذار د درويشانو
درست ديوان د رحمٰن زار تر دا غزل شه
چه بيان ئې کړو کردار د درويشانو

* ۱ * ۱۰۳ *

يڅوک مهٔ شه ګرفتار د تورو زلفو
مه اسير شه په کفار د تورو زلفو
هم په شان د تورو زلفو پريشان وی
هر چه کاندی انتظار د تورو زلفو
د محشر عالم به کله په قرار وی
څوک به څه غواړی قرار د تورو زلفو
څو ئې صبح د قيامت د ميده نهٔ شی
ورځ به نهٔ شی شبِ تارّ د تورو زلفو

مګر شمع د سپین مخ شي باندے بله
کنګرهٔ نشته نور انوار د تورو زلفو
تار په تار کا د عاشق د خاطر خونه
چه حلقه شي تار په تار د تورو زلفو
چه تمام جهان ئے نښتے دے په دام کښے
څوک به څه کاندي انکار د تورو زلفو
زهٔ له کوم يوهٔ کمنده سر اوکاږم
کمندونه دي بسيار د تورو زلفو
په تندي د محتسب دُره کا ماته
چه پرے واشي دُره دار د تورو زلفو
همره زړونه ئے پيئلي په هر تار دي
چه تسبيح کړهٔ خدائے زنار د تورو زلفو
ملک د هند او د حبش ئے واړه زير کړهٔ
چه پيدا شو شهريار د تورو زلفو
ښامارانو غوندے کړځي په کنجو نو
نهٔ شي هيڅ په زړهٔ کښے دار د تورو زلفو
که بل مار چيچل په لاسو يا په پښو کا
په زړهٔ خولهٔ لګوي مار د تورو زلفو
د رحمٰن تر قلم مشک و عنبر ووري
چه آغاز ئے کړهٔ اشعار د تورو زلفو

* ۲ * ۱۰۵ *

اوښکے نهٔ لري حساب زما د سترګو
بے حسابه شو سيلاب زما د سترګو
سياهي مے همه واړه سفيدي شوه
هسے پريولي شو کتاب زما د سترګو
که بے سرهٔ دي که بے سپين دي که بے تور دي
اوښکو يوړو هر اسباب زما د سترګو

چه رخسار د هغه یار راڅخه پټ شي
حبطه شي آب و تاب زما د سترګو
چه ګذار ئے په دا ګرمو اوښکو نهٔ شي
مګر کانړي دي حباب زما د سترګو
چه مے نقش په زړهٔ سرے شوندے د یار شوے
کان د لعلو شو ګرداب زما د سترګو
که نور خلق د آفتاب په رڼړا زیست کا
مخ د ترکو دے آفتاب زما د سترګو
مائے خیال لره ابلق د سترګو زین کړو
قدم نه ږدی په رکاب زما د سترګو
لـکه اوتښتي وحشـیان لـه مردمانو
هسے اوتښتیدو خواب زما د سترګو
ما رحمٰن چه سترګے رونړے په خپل یار کړے
اوس محال دے اِجتناب زما د سترګو

* ۱۰۶ * ۳ *

---

د دلبرو په درګاه نهٔ حرمت لرم نهٔ جاه
غوټوی مے د زړهٔ ولے د چشمانو په نګاه
همره قدر مے هم نشته لـکه قـدر د ګـیاه
هیڅ خبر له ځانه نهٔ یم چه زړهٔ څه لرم ګناه
هو نظر راباندے نهٔ کا از برائے عنـد اﷲ
که له غمه ئے سر پټ کړم هل سر نهٔ لرم پناه

د رحمٰن په خیر دِ نهٔ شي
حال احوال د چا تبـاه

* ۱۰۷ * ۱ *

که څوک لاس له سوده اوکاږي زيان نشته
په ملنګ باندې قلنګ او تاوان نشته
جدائي له اشنا نه پيدا کيږي
نا آشنا لره هيڅ غم د هجران نشته
د وفا خريدار، بل خوا ته د دروسي
دا متاع د زمانې په دوکان نشته
مګر ځان و خدائې ته پاسلې په امان شي
ګنړه بل خواته د هيچا امان نشته
هغه يار به زه و کومه خواته غواړم
چه ئې هيچرته منزل او مکان نشته
دلبران که هر څو ډير دي په جهان کښې
زما يار غوندې دلبر په جهان نشته
چه هم قد لري هم زلفې هم سرې شونډې
دغه هسې رنګ آفتاب په دوران نشته
عشق عاشق لره يو هسې ګلستان دې
چه و باغ وته ئې لار د خزان نشته
عاشقان په عشق کښې واړه سلطانان دي
په دا ښهر کښې نيستګار او ناتوان نشته
که مجنون غوندې په عشق کښې څوک صادق شي
د ليلي په دروازه کښې دربان نشته
دانايان به د رحمٰن په قال پوهيږي
دلته کار د هر نااهل و نادان نشته

*۲*۱۰۸*

يادموې په خولهٔ مکه او مدينه
نسکور پروت ئې د عورتې په سينه
زورند سر لکه غنچه مراقبه کړې
پټ د نقش د زړهٔ رخت وی رنګينه
د اطلسو قبا غواړې نهٔ ئې موسر
له ناکامه د خرقه کړه پشمينه

عبادت دِ څو تيرے تر معصيت کړه ـــ څه خو اونيسه و ځان ته آئينه
کينه بده ده بيشکه جنګ حرام دے ـــ نۀ له نفس و له شيطان سره کينه
د مردانو کار له نفسه سره جنګ وی ـــ نه زنان غوندے له نقش و نګهنه
تر نا پاکو نارينه ؤ ده بهتره ـــ پاکدامنه پرهيزګاره ارتينه
د ديندارے ارتينے له يوے کوښے ـــ صدقه شه سل بے دينه نارينه
نيکوکار سړے بهتر دے که خوردسال وی ـــ تر سپين ږيری بدکرداره ديرينه

بد کردار که صد سالهٔ وی و رحمٰن ته
سرکنـــد يری لکــه طفــل شبينه

* ۱۰۹ * ۳ *

---

دواړه سترګے مے کړے دا ستا په لور دی ـــ مدام ډوبے د فراق په آب شور دی
زۀ يو سړے يم چارچشمه دا ستا له سپيو ـــ چه مے دوه سترګے دا ستا په لور څلور دی
کنډولی د دواړو سترګو ستا په طمعه ـــ و هر لور ته مے نيولی کور په کور دی
چه مے خيال د ترکو اوليدو په زړهٔ کښے ـــ دواړه کسی مے و زړهٔ وته تسکور دی
ما قبول د رقيب ناز کړو ستا د پاره ـــ سودوزيان په دا جهان کښے خور اوورور دی

په رحمٰن باندے دا هسے ګمان مهٔ کړه
چه بے تا په نور څه غليږی، هغه نور دی

* ۱۱۰ * ۱ *

---

عاشقئے را باندے سورے کړے مرئ ـــ هيڅ مے نۀ دروسی بے ياره تر مرئ
څه اثر به ئے د عقل وی په سر کښے ـــ د هغو په سر چه کښيني ښاپيرئ
د مژګانو په پنجه مے زړهٔ اوکاوی ـــ خدائےدِ ترکو مستے سترګے کړے زمرئ
علوفه به ئے بے غمه نور څه نۀ وی ـــ هر چه کاندی د خوبانو چاکرئ
لږ د صبر سبق ما لره هم راکړئ ـــ که په عشق کښے څوک د غمه طاقت لرئ
خدايه څه دِ د کوتوال په لاس کښے ورکړم ـــ چه شپه ورځ مے غيره وی لکه طرئ

په صورت مې نرنے تبه شوه ولاړه تا چه دواړه سترګې تورې کړې نرئ
د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم چه بندی شوم د هجران په کچرئ
نمر د شمع په فانوس کله پټيږی تا چه واغوستې د خيال جامې نرئ

زۀ رحمٰن په زړۀ نرې کړم هغه جونو
چه ئې ملا وی د ويښتۀ په دود نرئ

* ۱۱۱ * ۲ *

هغه يار چه بے وفا دے څه يار نۀ دے
هغه کار چه بے بقا دے څه کار نۀ دے
که د سر شيندل دشوار په ما او تا دی
دا په عشق کښې سهل کار دے دشوار نۀ دے
انديښه سړے بيدار کاندی له خوبه
کم انديښه که بيدار وی بيدار نۀ دے
که څه عمر دے عاشق لره وصال دے
د هجران عمر د عمر په شمار نۀ دے
د چشمانو په څنبل کښې تير و ير شی
اعتبار د زمانې اعتبار نۀ دے
که د سلو څويو پلاز شی، په ئې څه کا
بے وقوفه څوئے د پلار څه پکار نۀ دے

معشوقې هميشه ناز په عاشق کاندی
رحمٰن هيڅ له خپله ياره ازار نۀ دے

* ۱۱۲ * ۳ *

د عشق زخم څه د زخم په شان نۀ دے
د هل زخم په څير سهل و آسان نۀ دے

عاشقان و معشوقے سرہ پوھیږی
دغه راز و نور عالم ته عیان نهٔ دے
عاشقی نهٔ ده که گورے حیرانی ده
گرم سړے په دغه کار کښې حیران نهٔ دے
بو عاشق دِ څوک را اوښئ په عشق کښې
چه ئے روډ په مخ د اوښکو روان نهٔ دے
همره اوښکے د عاشق په گریوان دروی
تهٔ به وائے چه یو سیند دے گریوان نهٔ دے
دا هجران دے چه ئے مرگ په عاشق گران کړو
که هم ځان ورڅخه دروی هیڅ گران نهٔ دے
نور غمونه که په ځان د سړی بد وی
غم د ترکو بد د هیچا په ځان نهٔ دے
د دوزخ د اور که تاؤ له حده تیز دے
برابر د بیلتانهٔ له نیران نهٔ دے
چه بالهٔ شی څوک په عشق کښې کم عقل
دا کم عقل ډیر هوښیار دے نادان نهٔ دے
چه بے یاره زهٔ جهان وته نظر کړم
رحمٰن وایم چه ویران دے ودان نهٔ دے

* ۱۱۳ * م *

ستا د عشق حرفونه تور نهٔ دی گلگون دی
هم په دا چه نوشته په جگر خون دی
تشبیه نهٔ شی هغه ځم د عشق له میڅو
چه ئے خاورے د فرهاد او د مجنون دی

د دنیا چارے همه واړه فانی دی
دا د ستا جورو وفا ولے افزون دی
مقتولان ستا د غمزو دی لاله نهٔ دی
چه په سرهٔ کفن له زمکے را بیرون دی
چه ئے هیڅ بها ځلمیو ځغه نشته
جونه نهٔ دی سکه ګنجونه د قارون دی
بادشاهان به په یو دم کښیے ګدایان کا
ما لیدلی فسادونه د ګردون دی
د رحمٰن د زړهٔ خوناب مګر قبول شی
چه مخونه د دلبرو ږږے ګلګون دی
* ۵ * ۱۱۴ *

د عاشق نظر په خورد و په خواب نهٔ دے
مراد ئے بے د یار له دره بل باب نهٔ دے
تهٔ نظر په خپل هنر په عقل مهٔ کړه
دا اسباب په عاشقئے کښیے اسباب نهٔ دے
چه د یار سره حساب د دنیا کاندی
دغه هیڅ په عشقانو حساب نهٔ دے
چه عاشق په عاشقئے کښیے ارباب نهٔ شی
که د درست جهان ارباب شی ارباب نهٔ دے
هر چه یار منع کوی له خپله یاره
دا کتاب، د عاشقانو کتاب نهٔ دے
دا حجاب، چه نور عالم ئے حجاب بولی
دا زما د یار تر میانه حجاب نهٔ دے
که ثواب دے هم سوا د یار له مخه
ما ګڼلے دغه کار په ثواب نهٔ دے

که لیدلې زلیخې یوسف په خوب وو
ما په وینبه دے لیدلے په خواب نهٔ دے
صبر اونیسه په مخ کښې که مراد غواړې
هیڅا کړے دغه کار په شتاب نهٔ دے
رحمٰن سوال د بوسے کړے دے له یاره
لا ئے هیڅ څینې موندلے جواب نهٔ دے
* ۱۱۵ * ۶ *

همیشه دِ زما سر او ستا قدم وی
تر هغه ساعته پورے څو مے دم وی
ستا له لاسه واړه ما لره نافع دی
که مے زهر وی په زخم که مرهم وی
زهٔ بے تا هسے گمان کړم چه سفال دے
که نسکور مے په لبانو جام د جم وی
نور عالم که د دنیا په ښادئ ښاد وی
زما زړهٔ دِ مدام ښاد دا ستا په غم وی
که په زړهٔ باندے مے سل غمونه راشی
دا ستا غم دِ تر همه وُ مقدم وی
ما دِ ستا له غمه خدائے بے غمه نهٔ کا
تر هغه ساعته پورے څو مے دم وی
رحمٰن ستا په مخ مئن دے خدائے خبر دے
که په دا کښې به هیڅرے زیات و کم وی
* ۱۱۶ * ۷ *

هر چه ستا په زنخدان کښې ئے منزل شی
لکه ... تازهٔ کښې به جلبل شی

څوک چه نوم دا ستا د شونډو، په خوله واخلي
که ئے زهر وی په خوله کښے هم عسل شی
په هجران، که زۀ بے برګ و بے نوا یم
لکه ګښت چه اوبۀ نۀ موی شلل شی
پۀ عاشق باندے دا هسے ګمان مۀ کړه
چه یار زړۀ ورڅخه یوسی تش ګوګل شی
په جهـان تر اشنایئے خواږۀ څه نشته
ولے حیف دے چه هجران پکښے حنظل شی
زۀ رحمان بے یاره هسے شول و شل یم
لکه کب چه بے محیطه شول و شل شی

* ۸ * ۱۱۷ *

د ساقی په لاس کښے جام د میو نادر دے
مطرب ایښے په زانو باندے رباب دے
ته چه ما وته تـوبه وائے ناصحـه
په دا وخت کښے چا څخه د توبے تاب دے
زۀ چه څان منع کوم د عشق له کاره
په دا هسے کار کښے کوم سود او ثواب دے
دا آسمان چه لوئے په عقل کښے یالۀ شی
په محیط د عاشقئے کښے یو حباب دے
هر چه ژغوری سر و مال په عاشقئے کښے
هغۀ کړے کور په مخکښے د سیلاب دے
تۀ چه خوب غواړے په عشق کښے راته وایه
کوم چا کړے د زمری په خوله کښے خواب دے
بے عمل که کتاب کیږدی په سر، څه شو
ګویا ایښے ئے تر ښو لاندے کتاب دے

چه د شر له عملونو نه خیر غواړی
تشنه لب غونډے سر شوے په سراب دے
د دشمن له مکارئ نه اوویــر یږه
په نرمئ ئے غلط مشه سنګ در آب دے
عبادت په شتاب هسے کــړه رحمانه
لکه عمر چه دِ تلوئے په شتاب دے
* ۱۱۸ * ۹ *
غواصان که ګوهر غواړی ګوهر دا دے
بے دلان که دلبر غواړی دلبر دا دے
زما یار غونډے به یو دلبر هم نهٔ وی
د جمــلاؤ دلبــرانو سرور دا دے
خوند د لبو او د چاهِ زنخدان ئے !
راشه ګوره زمزم دا دے، کوثر دا دے
چه دِ وصل او هجران وته نظر کړم
زهٔ ګمان کړم جنت دا دے سقر دا دے
تهٔ خطبــه په منبر څه لولے خطیبــه
قدم کیږده په ځان باندے منبر دا دے
د مکے سفر آسان دے، مرد هغه دے
چه له ځانه سفر کاندی سفر دا دے
هــر منعم چه دلجــوئی د قلنــدر کا
هغه نهٔ دے قلندر، قلندر دا دے
چه توانګر د قناعت په خزانه شی
بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دے
دا هنر نهٔ دے چه خاوړے څوک سرهٔ زر کا
چه زر خاورے کا رحمانه هنر دا دے
* ۱۱۹ * ۱۰ *

د دنیا چارے همه واړه غلوَل دی
دا ګمان په هیچا مه کړه چه ہے خپل دی
هیڅ مزه په دا جهان کښې پاتے نهٔ شوه
د یخ سوری په اوبو پورے کول دی
یوزه غوړ د غوبنو شته په هر چا پورے
که د شرم یوزه غوړ غواړے باطل دی
که دِ دوه کاسے دانے وی په کندو کښې
پس له شامه هسے وایه چه د بل دی
که تهٔ یو یا دوه عیبونه د چا شمار کړے
بل به هسے تا ته وایٔ چه ستا سل دی
نصیحت د ناصحانو اثر نهٔ کا
د سرے اوسپنے خوشے تکول دی
دا نا اهله همدمان دی نهٔ پوهیږم
که سوچئے د وحشیانو پندے په کوکل دی
*۱۲۰* ۱۱*

دنیادار که مستغنی په سیم و زر دے
هنر مندو ځنځه ګنج د خپل هنر دے
بیهوده به زورآور و ځان ته وائی
د دنیا سړے که هر څو زورآور دے
هسے مهٔ وایه چه زهٔ یم په جهان کښې
پیدا کړے خدائے د سر د پاسه سر دے
ځنے ځنے نے ولیان پیغمبران کړل
نهٔ چه هر سړے ولی او پیغمبر دے
جودانه قدر یو لعل پکښې پیدا شی
نور جهان واړه د تورو کاڼړو غر دے

یو بادشاه دے چه لښکر ورپسے دروسی
نه په هر یوهٔ سړی یسے لښکر دے
پیدا کړے خدائے سړے په تفاوت دے
هسے نه چه جهان واړه برابر دے
که د عمر و رفتن ته څوک نظر کا
دا به وائی چه آفتاب د نمازدیګر دے
چه ئے سر په زمکه ایښے وی خپل یار ته
په آسمان باندے ختلے لکه نمر دے
تعجب زما د ډیرو اوښکو مهٔ کړه
ما موندلے په دا بحر کښیے ګوهر دے
د ریا خرقه ئے خدائے مهٔ کړه په غاړه
رحمٰن کوږ دستار تړلے قلندر دے
*۱۲* ۱۲۱*
دا چه مست په مینو راغے یار د چا دے
بیا به تاخت کا په کوم غولی، وار د چا دے
چه زړهٔ سوے ئے د حرم په صید هم نهٔ شی
دا بے درد او بے صرفے ګذار د چا دے
ما خو نهٔ دی څوک بے وجهے آزار کړی
دا چه ما آزاه وی آزار د چا دے
چه ئے درست جهان د مخ په رنړا زیست کا
دا آفتاب غوندے روښان رخسار د چا دے
چه بلبل ئے رسیدے تر ګلو نهٔ شی
دا دننه په حرم ګلزار د چا دے
چه هیڅ ترس په زړهٔ کښیے نهٔ لری رحمانه
دا ناترس او بے پروا نګار د چا دے
*۱۳* ۱۲۲*

که دلدار په دلدارئے زما قدم پردی
ګویا هر قدم په لارے د حرم پردی
ځائے لری که بے منته بوسه را کړی
کوم کریم، په چا منت د خپل کرم پردی
معشوقه مشفقه بویه مهربانه
نهٔ قارون چه په ځان اسم د حاتم پردی
هسے پټ لرم دا زیړ رخسار له خلقو
لکه زر چه څوک له خلقو پټ پنهم پردی
خدائے و ما وته ګلونه د جنت کړل
که داغونه مے په زړهٔ باندے د غم پردی
هیڅ ماڼه دِ څوک لهٔ مستو سترګو نهٔ کا
کوم یو مست دے چه قدم په لارے سم پردی
راحت نهٔ دے بے زحمته چا موندلے
کوم طبیب دے چه په ووغ صورت مرهم پردی
زهٔ هر ګوره تر صنم پورے شرمیږم
برهمن چه سر په پښو د خپل صنم پردی
و اسمان ته لار د عقل نهٔ رسیږی
دا خو عشق دے چه په عرش کرسیٔ قدم پردی
زهٔ رحمٰن ئے تاج ګڼړم د یار له لاسه
که مے پنډ په سر د جور و د ستم پردی

*۱۴*۱۲۳*

هغه زړهٔ چه خدائے روښان کا جام د جم شی
په دا جام کښے ورښکاره تمام عالم شی
په آدم کښے د حیوان خویونه هم شته
بیا هالله ئے آدم بوله چه آدم شی

چه خوبونه د چارپایو په کښې نهٔ وی
سړی توب په سړی هاله منسلّم شی
چه آغوستې ئې لباس وی د پاکانو
د ناپاکو چارې کاندی خو به کرم شی
که هر څو طعام لذیذ وی مزه نهٔ کا
چه یوه زره نمک ئې زیات و کم شی
ښادی هر چرې د غم په اندازه وی
د هغو به څه ښادی وی چه بیغم شی
هر چه خپله رضا پاسلوی قضا ته
که هر څو په ځان ناخوښ وی خوښ خرم شی
عاشقی چه تر کماله اورسیږی
د خپل یار له لاسه زخم ئې مرهم شی
که په ځان باندې قدم کیږدې رحمانه
آسمانونه به دِ لاندې تر قدم شی
*۱۵*۱۲۳*

هر نګار چه بې وفا دې نګار نهٔ دې
په ګلزار کښې چه ګل نهٔ وی ګلزار نهٔ دې
په تلخئی د میئو مست خلق مې خوښ دی
هغه خار چه بوئی د ګل لری خار نهٔ دې
دینداری دنیاداری ده څپله لرې
ما لیدلې هیڅ دیندار، دنیادار نهٔ دې
که روزګار دې په جهان کښې، عاشقی ده
د دې نور عالم روزګار څه روزګار نهٔ دې
چه تصدیق ئې په خپل زړهٔ کښې محکم نهٔ وی
دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نهٔ دې

په هر زره چه د خپل یار د غم غبار وي
دغه ابر د رحمت دے غبار نه دے
چا په کسب بے له عشقه نور څه نه کړه
بارے ګنج دے چه هر چا ته اظهار نه دے
معشوقه وفا له هیچا سره نه کا
ګنړه کوم یو د دے رخت خریدار نه دے
د دلدار وصال د خدائے په داد مونده شي
دغه کار مے د هیچا په اختار نه دے
په رحمٰن باندے منت د معشوقو دے
د بے حسنو معشوقو منت‌بار نه دے

*۱۲۵ * ۱٦*

ند عاشق بے خپله یاره قرار نه شي
بے طبیبه قرارے د بیمار نه شي
چه په لوح محفوظ کښے کښلے لیونے وي
په تعلیم د معلم به هوښیار نه شي
څوئے د پلار په غیږ کښے پروت وي روح ئے لار شي
د قضا علاج به مور او په پلار نه شي
د هغو چه خدائے کمال حسن روزي کړه
هیڅ نقصان ئے د منکر په انکار نه شي
درد و غم د عاشقئے چه ډیر مشکل دے
هیڅ سرے دِ په دا رنځ ګرفتار نه شي
همه عمر له خدایه دغه خواست کرم
چه دِ یار له خپله یاره ویزار نه شي
یار له یار سره جفا کا هسے ډیره
چه هیڅ فرق ئے د اغیار او د یار نه شي

که هر څو نے دلبری او دلجوئی کا
د رحمٰن په ترکو هیڅ اعتبار نهٔ شی

*۱۲۶*۱۷*

ورک شه ورک شه بدکردار او بدسړے
که دِ زور که دِ عزیز وی که پردے

تر هغهٔ لا نیکوکار بیګانه ښهٔ دے
چه بدکردار شی د چا څوئ او یا نمسے

لړګی لوښی همه واړه پرے سردار وی
بدکردار دے سورلنډے یا وړے سپے

هغه خاق به همه واړه لیونی کا
چه په کلی کښے یو سپے شی لیونے

بل علاج د لیونیو سپیو نشته
بے له مرګه چه ترے د ک کاندی کوهے

حرام خور د مخنثو په حساب وی
که به توره یا په تیغ وی مړنے

مړنے وئیلے بویه و هغهٔ ته
چه بے وجهے آزار نهٔ کا هیڅ سړے

دی ے نے اینبے په د یکدان روسپے تر تیغ وی
چه نے سور په آه تیغ نهٔ شی نغرے

هسے فیض نے و هر چا وته رسېږی
چه بالهٔ شی د خپل وخت حاتمِ طے

اے رحمانه چه بد فهم و بدکردار وی
راته وایه سپے بهتر دے که سړے

*۱۲۷*۱۸*

چه وصال د خپل جانان مے دے موندلے
ګنج د دُر و د مرجان مے دے موندلے

هموه طمع مے د خپله بخته نهٔ وه
نهٔ پوهیږم په څه شان مے دے موندلے

که په ډیر مشقت لاس لره خدائے راوست
زهٔ خو وایم چه آسان مے دے موندلے

چه مے یو نفس وصال ورسره اوشو
واړه اجر د هجران مے دے موندلے

څه عجب دے که تمام جهان زماشی
چه بادشاه د درست جهان مے دے موندلے

زهٔ رحمٰن په خپل اشعار شکر ګزار یم
چه دا هسے رنګ دیوان مے دے موندلے

*۱۲۸*۱۹*

په یوه ذره به اوړے یا به مړ وی
په یوه ذره به کرم یا به سور وی

که ځوانی له خدایه غواړے ځوان به ورمرے
او که پس له ځوانئے پاڼے خو به زوړ وی
سړے کله خو یا جوړ کله ناجوړ وی
خدائے خو نهٔ دے چه به تل تر تله جوړ وی
عاشقی به دِ آسمان غوندے څرګند کا
که مجنون غوندے هر څو په صورت ووړ وی
عاشقی بے جذبے چرے ده رحمانه
د مجذوب د یار پهٔ مهر کښے سرور وی
* ۲۰ * ۱۲۹ *

آشنائی توره بلا ده آشنا مهٔ شے
جدائی به دے فنـا کا فنـا مهٔ شے
درد و غم به دِ نه زرهٔ ولے کا غوښے
ګرفتار په درد و غم د جانا مهٔ شے
په زیړ رنګ به دِ تل سرے اوښکے بهیږی
د دورنګو په څیر ګل د رعنا مهٔ شے
غم په دا چه دروغژن د خدائے دښمن دے
و هیچا ته دروغژن په وینا مهٔ شے
که اعلیٰ مرتبه غواړے عاشقی ده
نور همه واړه ادنیٰ دی ادنا مهٔ شے
همیشه په سرنګون په فکر ناست ئے
د رحمٰن هسے مشغول په ثنا مهٔ شے
* ۲۱ * ۱۳۰ *

له دے کته له پوزیه خو به لاړ شے
ترو بیا خدائے خبر چه کوم خواته به لاړ شے

په ظاهر صورت خو هسې معلومیږی
چه به خس غونډے تر پښو لاندے لتاړ شے
دا آسمان زمکه به وی او ته به نۀ ئے
په ودانه ودانئے کښې به ویجاړ شے
بهار بد ګلو عمر مدام نۀ وی
عندلیب غونډے به پاتے په اهار شے
په ویلاړ ویلاړ به ځان وربسے ورک کړے
چرے نۀ وی چه د ترکو په ویلاړ شے
که لیلی غوارے بائدۀ دی دا رحمانه
چه مجنون غونډے ساکن د کوه و کاړ شے
* ۱۳۱ * ۲۲ *

چا چه کړے و دنیا وته اسرے دی
د هغو په سر همه خاورے ایرے دی
نادانان که د دنیا په کار نازیږی
و دانا وته دا وښتے مسخرے دی
چه بے خدایه محبت کا هغه خلق
نارینه ئے واړه خرۀ او ښځے خرے دی
و سپین‌ږیرو وته مه وایه سپین‌ږیری
همګی واړه طفلان د ګوارے دی
هسے وایه چه سړی دی د زنانو
که ئے ایښے په دستار کښے قر قرے دی
چه نۀ فیض نۀ څه بهره ځنے مونده شی
همګی واړه بے فیض و بے بهرے دی
ذخیره د دنیا مه کوه رحمانه
دا همه واړه د خاورو ذخیرے دی
* ۱۳۲ * ۲۳ *

چه په نور څه پورے زرهٔ ترے بے خدایَ
څه پوهیږے چه په څائے کړے که بے ځایَ
دا خو نشته چه به تل تر تله پائے
که بیــا پائے خو تر ســلو کالو پایَ
که دِ سل کاله شی عمر خو به تیر شی
دغه پسه به بیا څه کړے راته وایَ
سم له لاسه چارے نشی مرد هغه دے
چه بیــدار وی و غلیم وته لــه ورایَ
تهٔ په اصل کښیے سرے ئے څاروے نهٔ ئے
د چارپایو چــارے مــهٔ کوه دوپــای
مرتبه به دِ د مچ او د میږی شی
زرهٔ پــه غوږو غوښو مهٔ تړه همایَ
موږ به نهٔ شے تهٔ په حرص بے قناعته
اے په تخت د اورنګزیب ناسـته ګدایَ
وړاندے سرائے لره توښه تړه رحمانه
څو سفر دِ کړے نهٔ دے له دے سرایَ

*۲۴*۱۳۳*

تهٔ په هره کړے غم د سیم و زر خورے
زهٔ دِ هره کړے ګوینم چه خپل سر خورے
عاقبت به دِ یو خندل له سینے اوزی
تهٔ چه تل په هر یو ښاخ باندِ ثمرخورے
په عوض ئے کوم طاعت کړِ راته وایه
دا نعمت چه په هر شام و هر سحرخورے
روژتی په څلووم پهر افطار کا
تهٔ څلور څله طعام په هر پهر خورے
که یو څله تر کــماله اورسیږے
نور به غوښے د خپل ځان لکه قمرخورے
که ښیښه د نام و ننګ دِ شی ترخنګه
د هر چا په کجروئے به خپل ځیګرخورے
بے هنرو له قند هم زهر قاتل دی
قند ئے اوګنړه که زهر په هنر خورے

نهال په زړۀ د صبر تحمل کړه رحمانه
چه مدام د برخوردار نه څیر بر خوړے

*۲۵* ۱۳۴*

تهٔ چه خپله بے عقلی هوښیاری بولے
کاشکے بیاموسے د غوښتو په نرخ شولے

عشق یو داد دے په عاشق باندے له خدایه
هسے نهٔ دے چه ئے پیرے یائے پلورے

زلیخا غوندے به بلـه شیدا نهٔ وی
که د مصر مستورے شی واړه تولے

هغه بحر څه په بحر حساب نهٔ دے
چه اوبهٔ ئے خاک آلوده وی ختـولے

له هغو سره به څه فکر د یار وی
چه په غم وی د کاله یا د کهولے

عاشقی د نغری پـه غـاړه نهٔ شی
څو په یار پسے وانهٔخلے څلے زولے

د وصال پـه نعمتونو غره مـهٔ شـه
جدائے ئے خلقے کړے پـه زړهٔ خمولے

دُر گوهر په تله نهٔ دی چا تللی
د رحمان شعر گوهر دے څه ئے تولے

*۲۶* ۱۳۵*

په نامه د هغه خدائے مے دا بیان دے
چه یو نوم ئے په زرونو کښے سبحان دے

هم بادشاه دے د جمله وُ بادشاهانو
هم د هر یوهٔ په سر باندے سلطان دے

هغه کار چه و هر چا وته مشکل وی
هغه کار واره و دهٔ وته آسان دے

څوک آفتاب شی په اسمان راخیژولے
دهٔ آفتاب راخیژولے په اسمان دے

څوک د نمر په مخ حجاب شی غوړولے
دهٔ پټ کړے نمر په اېر کښے پنهان دے

څوک په شپه کښې شي مهتاب پیدا کولے — دهٔ په شپه کښې پیدا کړے ماه تاباں دے
څوک یو څاڅکے پرے یستے شي له اسمانه — نزول کړے دهٔ په مونږ باندې باران دے
څوک شي روح ننه ویستے په یو ماشي — ژوندے کړے دهٔ په روح تمام جهان دے
څوک و سنګ شي رنګ د ګلو ور کولے — دهٔ وسنګ ور کړے رنګ د ارغوان دے
څوک له خاورو شي یو ګل پیدا کولے — دهٔ له خاورو پیدا کړے ګلستان دے
څوک له اوره شي اوبهٔ پیدا کولے — دهٔ له اورې پیدا کړے زمستان دے
څوک له سنګه شي ګوهر پیدا کولے — دهٔ له سنګه پیدا کړے دُر مرجان دے
څوک شي رزق هر مخلوق ته رسولے — دے د هر یوهٔ مخلوق روزی رسان دے
څوک بنده لره ایمان شي ور کولے — دهٔ ور کړے هر مومن لره ایمان دے
څوک له زمکے و اسمان ته شي ختلے — دهٔ عیسیٰ لره ور کړے دا مکان دے
څوک له خدائے سره خبرے شي کولے — دهٔ موسیٰ مشرف کړے په دا شان دے
څوک ایښودے په توسن د آسمان زین شي — ایښے دهٔ په هوا تخت د سلیمان دے
څوک په سپینه پیره پا ئې ترقیا سته — دهٔ په خضر باندے کړے دا احسان دے
چه په دهٔ شي هغه کار په هیڅ نهٔ شي — هر توانا د دهٔ تر توان پورے ناتوان دے
په اوبو کښې ئې د کانړو کوټ پیدا کړو — دهٔ ور کړے هکښې اور لره مکان دے
په سجود ئې زمکے سر دے لګولے — زوړند سر هم په رکوع سره آسمان دے
هره ونه په قیام ور ته ولاړه — هر ګیاه ئې په تسبیح سره زبان دے
همه واړه په تسبیح د دهٔ مشغول دي — که ملک دي که پیري دي که انسان دے
هر ماهي ئې په دریاب کښې حمد وائي — هر مارغهٔ ئې په چمن کښې ثناخوان دے
حق په حق ئې هیڅ نهٔ ده ثنا کړے — نهٔ له هیڅ واقع شوے دا بیان دے
مخلوقاتو هسے نهٔ دے پیژندلے — لکه دهٔ سره چه قدر د خپل ځان دے
حد پایان ئې هیڅ سړي موندلے نهٔ دے — معرفت ئې هسے بحر بې پایان دے
نهٔ هیڅوک د دهٔ په څیر د دهٔ په شان دي — او نهٔ دے د چا په څیر د چا په شان دے
نهٔ ئې زیان نهٔ ئې زوال نهٔ ئې نقصان شته — دے بې زیانه بې زواله بې نقصان دے
نهٔ ئې مثل نهٔ مثال نهٔ ئې مکان شته — دے بې مثله بې مثاله بې مکان دے
پاک ئې اوګڼره بې شک بې ګمانه — له هغهٔ چه د چا شک د چا ګمان دے

نۀ ئې څوک په سترګو وینی نۀ لیده شی    او بې چونه بې چګونه نمایان دے
که څوک وائی لیدے نۀ شی لیدے شی    که څوک وائی وهر چا و ته عیان دے
منزه دے له جمله وُ جهتونو    او بیا هر جهت په دهٔ باندے ودان دے

له زرګونو صفتو نو راشه ګوره
چه ئې کړے نیم صفت عبدالرحمٰن دے

*۱۳۶ * ۲۷*

هغه دم چه زړهٔ ملال شی    یو ساعت ور باندے کال شی
حیران تلې وی په فکر    فراموش ئې قیل و قال شی
نۀ ئې ګفته نۀ ئې شنونه وی    په غوږ کونړ په ژبه لال شی
نۀ جواب و چاته کاندی    نۀ ئې غوږ د چا په سوال شی
علم عقل ځنې پاسی    ذرست صورت ئې خواب وخیال شی
په رنړو سترګو اودهٔ وی    لکه نقش د دیوال شی
قوت ئې وینے د ځیګر وی    هم د غه ئې اشتغال شی
د چشمانو له بارانه    په رخسار ئې پشکال شی
په سبب د عاشقئے    تیر تر آل و تر عیال شی
هم تر آل و تر عیاله    هم تر مال و تر منال شی
په خپل در او په خپل غم کښې    تر عبا لمه فارغ بال شی
نۀ طاقت نۀ ئې مجال وی    بے طاقت و بے مجال شی
که ژوندے وی په جهان کښې    د مرده وُ په مثال شی
په خشکئے کښې ماهی ګوره    هسے بے تیغه حلال شی
پاسیدے نۀ شی له ځایه    په زړهٔ غوځ په تن کهال شی
د ویشتلو په څیر یون کا    له کل خلقو په دنبال شی
لکه خس د لوئے لارے    تر قدم لاندے پائیمال شی
خدائے له غمه نړے ژغوره    بیا لا بویه چه خوشحال شی
چه د زړهٔ ولے شی غوځے    نور ژوندون ئې په اشکال شی

د باغبان سترګې کا سپینې ‎ ‎ چه تازه نخل نهال شي
رو ئیدن د کښت آسان دے ‎ ‎ پرورش به ډېر جنجال شي
ویراني په یوه دم شي ‎ ‎ ودانی په ډېر اشکال شي
چه پلار و سری پیا لا بویه ‎ ‎ چه نې خوړے به کمال شي
څوک خبردے له دے دوره ‎ ‎ چه په ما به پېښ څه حال شي
چه په حال کښې نې حال نۀ وی ‎ ‎ څه امید به استقبال شي
د یوه ساعت له مخه ‎ ‎ خدائے زده څۀ رنګ به احوال شي
د دنیا چارے فاني دی ‎ ‎ رفت آمد ئیے په یرغال شي
په مثال کښې لکه سورے ‎ ‎ خواؤ شا د هر دیوال شي
اعتبار په اوبو مۀ کړه ‎ ‎ استاده به په غربال شي
د بنړو په څنبول کښې ‎ ‎ شال شړے کا شړے شال شي
که باد شاه د ولایت وی ‎ ‎ کنډو لے په لاس کنګال شي
په ثواب ئے غلط مۀ شه ‎ ‎ په یوه ساعت وبال شي
په کمال ئے مۀ نازېږه ‎ ‎ په یوه ګړے زوال شي
د هاتیانو سوداګر وی ‎ ‎ بیا د ګاؤ خر د لال شي
جوهری وی جوهر پلوری ‎ ‎ خاورے اغیږی کلال شي
کلالی او ګل کاری کا ‎ ‎ فروشنده د مات سفال شي
په هستئے کښې نے اشراف وی ‎ ‎ په نیستئے کښې نے ارزال شي
د څوانئے په وخت کښې شیروی ‎ ‎ د پیرئے په وخت شغال شي
چه مشهور په صداقت وی ‎ ‎ پوچ ګوئی وا خلی بطال شي
محتسب وی احتساب کا ‎ ‎ کوتوالی واخلی کوتوال شي
نیکوکار وی نیک عمل کا ‎ ‎ بد کردار او بد افعال شي
سر نوشت د سړی خپل دے ‎ ‎ یو عیسیٰ وی بل د جال شي
چه نیکبخت وی نیکوئی کا ‎ ‎ چه بد بخت وی بد سګال شي
لامس و پښے د هغۀ نیسه ‎ ‎ چه خوش خویه خوشخصال شي
په هجران کښې نا امیدۀ شه ‎ ‎ خدائے قادر دے که وصال شي

په حرامو کښې اُميد کړه ګوندے مخ دِ په حلال شي
کافر وباسي له کفره ! په يوهٔ ساعت ابدال شي
تور بهتر کاندی له .سپينو په سپين مخ باندے تور خال شي
آرزو مند د يوهٔ خس وي خداوند د ملک وصال شي
چه سيالی ئے کړے نهٔ وي له سيالانو سره سيال شي
په ډير عمر منفصل وي په ساعت کښې اتصال شي
ممکنات به منع نهٔ کا که څوک سل ځله سنبال شي
چه د خدائے رضا شي پيښه وصل پاتے د رمال شي

فال به څه کړے رحمانه
خپل افعال د سړی فال شي

* ۱۲۷ * ۸ :*

هر چه کښت ئے په باران او په سيلاب وي
د هغو عمر به واړه په عذاب وي
هغه ملک چه پکښے سيند او رودبار نهٔ وي
دهقانان به ئے همه خانه خراب وي
و آسمان ته به ئے سترګے وي ختلے
د باران له انتظاره به بے خواب وي
لکه څوک چه تلوی ئے په کړهي کښے
د هغهٔ ماهي په طور بهٔ کباب وي
لا به ګله بارانونه پرے نزول شي
چه تخيل د زراعت به ئے سيراب وي
هميشه له خدايه خواست د اوبو کاندی
که ئے چرے خواست . په عمر مستجاب وي

لکه تل چه ئے په زوړ د اوبو غوړ وی
همره غوړ ئے نهٔ په چنګ نهٔ په رباب وی
که همه عمـر باران وربانده اُوری
لا ګرمی ئے په صورت کښے د آفتاب وی
د ګرمئے او د خوشکئے له دهشته
د آفتاب په څير ګـذان ئے په ماهتاب وی
د اوبو له ډيـرے ډيـرے قيمتئے نه
لږکی لوښی ئے مردار په منجلاب وی
فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نهٔ کا
که اوبهٔ ئے ګنډے ودے په پيشاب وی
د اوبو په غلا چه ورشی نهٔ جار اوځی
که ساکن د خانقاه او د محراب وی
د اوبو په وېش چه ورشی انصاف نهٔ کا
که په لاس ئے ورقونه د کتاب وی
د اوبو ثواب ئے نهٔ کيږی له لاسه
که په ګوټ اوبو ئے عين د حج ثواب وی
د باران اُميد ئے نهٔ کيږی له خدايه
که ئے شپه او ورځ په سر بانده سحاب وی
پليتی به ئے له تنه څه رنګ دروی
چه اوبهٔ پکښے نايابے تـر ګلاب وی
هيڅ ئے مهٔ پوښتـه له غسله له اودسه
چه يو څاڅکے پرے ګوهر غونډے ناياب وی
په سبب د ډيـره ډيـره تيممـه
هميشه ئے سپيره وېره په تراب وی
د للمی سری په مخ کښے آب وی چرے
هغه خلق چه بے آب وی خو بے آب وی

په آبي کښې لا هم وي خونه ویرانه
هغه کلې چه د بل کلي پائیناب وي
یو په نڼسی هیڅ برے له سري ورخه
پائیناب سرے که څوئے د ارباب وي
سم حساب له عـزیزانو کله موسي
تل تر تله ئے د بل لاندے حساب وي
نۀ طاقت د بل وئیل لري نۀ صبر
لکه مار په ملا وهلے پیچ و تاب وي
نۀ ئے مرګ نۀ ئے فتنه له لاسه کیږي
لاس ترلے د خپل شرم په طناب وي
چه ئے زیست لا ئے روزګار په تحمل شي
همیشه ئے له بدئے نه اجتناب وي
که ږیره بده وینائے له خولے اوځي
هم هغه ئے په خپل ځان باندے عتاب وي
هسے شان سرے تیزي وربانده اوکړي
چه په عمر نۀ د سوال نۀ د جواب وي
همسایه او چلیکار ئے پښتانۀ شي
او په اصل په موچي یا په قصاب وي
ملائم وئیـل اثـر وربانده نـۀ کا
چه په زړۀ کښې ئے نۀ شرم نۀ حجاب وي
لکه دیو چه د سړیو په صورت شي
نۀ ګمان کړے چه سړے دے، دے دواب وي
په هیڅ رنګ د بد خوئے نه نۀ جار اوځي
هسے مست د جـاهلئے په شراب وي
چه اشراف د هسے خرسو په لاس کیوزي
تر و خلاصي به ئے له خون په کوم باب وي

هسے رزق دِ خدائے هیچا له ور نهٔ کا
چه د چا رزق په هسے رنگ سیلاب وی
تـر دا هسے زمیندارو هغـه ښهٔ دے
چه نوکر د یوهٔ تور کافر کلاب وی
نوکـری د یوهٔ سپی ورا ســره ښــه ده
دغه پریږده چه لا نوم ئے د نواب وی

د خشکئے له غمه قوم د رحمٰن خوښ دے
که رفتن ئے له جهـانه په شتاب وی

*۲۹ *۱۳۸*

ستا د تورو سترګو په یاداشت مے اوښکے وورې
حق دے که پرېوزی په شبرات د عمر ستورې
زلفې دِ سایه کړے مخ دِ نمر په جهان کړے
هرچا ته چه ګورم نیم په نمر وی نیم په سوری
څوک دِ په وصال کښے قندنبات څوک څګر خون خوری
چا و لیدو دیدن دچا شو سپین د سترګو توری
اور ستا د رخسار دے سا په خپلو اوښکو بل کړو
تل په آتش سوزی آئینه چه نمر ته ګوری
سترګے مے دا ستا له خیاله پریو تے و زرهٔ ته
څه شوکه سے یے سترګو صورت ځی په بل لوری
کله رقیبانو ته نظر کړے کله ما ته
ستا باران د مهر په ښو بدو یکسان اوری

ځان په مستو سترګو باندے مه غلوه رحمان
دا مستان هوښیار دی له حکمته سره ښوری

*۳۰* ۱۳۹*

تهٔ چه ما ته وائې چه په چا باندې شیدا ئې
زهٔ په تا شیدا یم وایه تهٔ چه یار د چا ئې

زهٔ به تا په کوسه زیرکئې شم پېرولې
چا زده لکه تا زده همړ وایه چه څه وائې

زهٔ چه کبرجن وم عاشقئې مې گردن مات کړو
تهٔ چه لکه وښ هم عغه هسې کبریا ئې

څان که ستا په مینه کښې فانی کړم څه به او کړم
تهٔ چه په دا هسې رنګ له آه بې پروا ئې

مرګ مې په تا ولې خدائې اختر کړو نهٔ پوهېږم
څه دِ په مرګ هم شته که مطلق په مرګ زما ئې

څه شو که زهٔ یم انګشت نما په مینه ستا کښې
زیات له مانه خوښ تهٔ د قاضی هم د ملا ئې

ستا د عشق تر توری ټکرئې د رحمن زار شه
دا هم سهل کار دې زما یاره که په دا ئې

*۳۱* ۱۴۰ *



# دوهیم دفتر

دوباره دِ راتله نشـته پـه دنیـا
نن دِ وار دے که دروغ کړے که ربښتیا
هره چار چه تر وخت تیره شي عنقا شي
عنقا نهٔ دے په دام نښتے د هیچا
تر ورخ تیرے اوبهٔ بیرته نه جاروزي
نهٔ جاروزي تیر ساعت په بیرته بیا
تیر ساعت په مثال مړے د لحد دے
مړ چا دے ژوندے کړے په ژړا !
که مقصود لرے تاوار کړه وخت کوتاه دے
غـره مـهٔ شـه د دے عمر په بقا
هره نښه چه صحیح کښږے په زړهٔ کښے
په غرور به هغه نښه کړے خطا
په اُمید اُمید ئے خلق نا امید کړل
د ایام له مکره مهٔ شـه بے پروا
چه د مرګ په تماچه دِ شي خوله ماته
ترو په ماته خوله به څه کوے ثنا
ویر . ژړلے ارتینے چـه ژړا وائی
تاتـه وائی که پوهیږے دا ویـنا
هلک نهٔ ئے چه په زور دِ ښوک تعلیم کا
هم عـاقل ئے هم بالغ ئے هم دانا
په عمل د نیک و بدو عمل اوکړه
چه په دے کښے دِ بهبود دے که په دا

سر دننه په کریوان کړه سترګې رونړے
دیر په پورته پورته مۀ ځه سر هوا
سر هوا سر هوا مۀ ځه و آسمان ته
تۀ په اصل کښیے له زمکے ئے پیدا
د عمل په ځائے به دا پوښتنه نۀ وی
چه تۀ ځوئے یا نمسے ئے د فلانا
په خپل ځان ښیګړه اوکړه غره مۀ شه
پـــه ښیګـــړه د ادے او د بابا
هغه ناوے چه په ځان ښائسته نۀ وی
ځوک ئے څه کوی ښائست د مور او نیا
دا خبره زۀ و ځان ته کرم اے یاره
دلګیر مۀ شه که مے نوم واخست د تا
نوم د ستا او د بل اخلم ځان ته وایم
نۀ مے کار نۀ مے غرض شته په بل چا
هر چه وایم همه واړه ځان ته وایم
څه مے کار څه مے غرض دے په نور چا
که مے ځانے د دے غمونو وے په زړۀ کښیے
مـــا به څه لـــره کـــوله دا انشا
چه د مرګ سختئے خوارئے دا ستا په خوا دی
اے رحمانه ولے نۀ مرے لا پخوا

*،*،*

هیڅ ثابته نۀ کړه چا د دے دنیا وفا
واړه مینے کاندی بے وفا په دا دنیا
هر ځوک چه دعوی په دا دنیا کا د خپلوئے
واړه باطل وائی دنیـــا نۀ ده د هیچا

۱۰ دا فلک کلال دے سازول او ماتول کا
ډیرے ماؤ تا غونډے پیدا کړل هم فنا
هر سنګ و کلوخ چه څرګندیږی د دے دهر
واړه ککرۍ دی څوک د شاه څوک د ګدا
دام دِ هیڅوک نۀ یړدی د دنیا و رهګذر ته
ښکار به اوکړے نۀ شی د سیمرغ او د عنقا
هر څوک چه د دے فانی نفس وابستګی کا
نۀ به شی تسرلے به زنځیر سره هوا
ماه دے که آفتاب دے همګی واړه خراب شی
ګل که همیشه وی هسے نه تر ابدا
مۀ دروسه رحمانه په خلاف د داناهانو
مینه د دنیا پسندلے نۀ ده هیڅ دانا

* ۲ * ۲ *

۱۱ تۀ چه ما ته وائے چه په څه کوے ژړا
نۀ در معلومیږی دغه خپل جور و جفا
تۀ جور و جفا کړے زۀ ژړا کووم دلبره
ستا که دغه نۀ وے دا به هم نۀ وے زما
څه بنادی به کاندی طائفه د عاشقانو
رسم د بتانو که هم دا وی لکه ستا
دا خصلت چه ستا دے که هم تل په دغه شان وی
نۀ را معلومیږی د دردمند د زړۀ دوا
یو دا ستا مانړے شو بل غرور د رقیبانو
وار په وار پسے وژنی کله هغه کله دا
هر چه عاشقی کا که په قطع افلاطون وی
زۀ خو ئے مجنون ګنړم که نن وی که صبا

ستے غم په عذاب د جدائے د وژلو نه دے
زۀ خو ګوندے ستا د کوځے سپے شوم په وینا

هیڅ نے پکار نه دی رحمان تا غواړی دلبره
دا زما رضا ده باقی هر چه ستا رضا

* ۳ * ۳ *

چه ئے نقش په زړۀ خیال شی د اشنا
صدقه ئے سر و مال شی د اشنا

پس له مرګه به ئے تیغ هسے مخ روښن وی
چه اشنا په تیغ حلال شی د اشنا

په آسمان د اشنائے به ئے مکان وی
چه زمین غوندے پائمال شی د اشنا

خوشحالی زما د زړۀ په هغه دم وی
په هر دم چه زړۀ خوشحال شی د اشنا

روح هغه ساعت داخل ګڼړم په تن کښے
چه ئے دخل په وصال شی د اشنا

نور د هیچا قیل و قال مے پکار نه دے
چه تر غوږ مے قیل و قال شی د اشنا

هم هغه یوه ګهړئے را باندے کال وی
چه یوه ګهړئے محال شی د اشنا

زرغونه ګاندی دانه زما د عیش
چه په زړۀ مے زرغون خیال شی د اشنا

نه بل څوک زما طبیب بے اشنا شته دے
نه به بل څوک په مثال شی د اشنا

د رحمٰن نظر په هیچا باندے نه وی
چه نظر ئے په جمال شی د اشنا

*۴*۴*

که ماښام تر ستونی ښکته کړی حلوا
صبا خواست کوی له خدایه د ښوروا

په هیڅ حال کښے دے قرار و صبر نه شی
لیونے کړے ډیر حرص ډیرے هوا

تمام عمر تر اشنا تر عزیز پورے
یوے کیډے مختورن کړے هم رسوا

چه په خپلے رسوا، ئے دِ پرواه نشته
نور به څه کړے په جهان د چا پروا

چه د نفس د پاره لاس و ځاته نیسے
دا زحمت له خدایه غواړے که دوا

نفس بے شماره عالم پرئیست و کوهی ته
خدائے دِ نه کا نابینا د چا پیشوا

په روا په ناروا کله پوهیږی
و چارپائے ته څه روا څه ناروا

چارپایان که غوړ و سترګے لری څه شو
په معنی کښے نابینا دی ناشنوا

زه رحمٰن له هغه علمه پناه غواړم
چه له دینه له مذهبه وی رسوا

*۵*۵*

سل ځله که اوڅوری ناصحان څیګر زما
بیل به وبله نه کا در د تا او سر زما

صبر ستا په عشق کښې دا خبره څه او زه څوک
نشته د دے چارے توان یو موئے قدر زما
ستا له محبته جاروانۀ زما دروغ دی
ولے خاورے نـۀ شی په دا لار بشر زما
واړه معشوقے د عـاشـقانو خبر آخلی
بے له تا چه نه آخلے یو دم خبر زما
هیڅ اندوه مے نشته بے دا ستا له جدائے
نور اندوه به څه وی، تر دغه بتر زما
خوب د کور و کلی په ناروه زما برهم شو
څه چل دے چه نۀ شی ستا په زړۀ اثر زما
کل واړه جهان که ما رحمٰن لره دلبر شی
چرے دے دلبره بے تا بل دلبر زمـا

*۶*۶*

هسے یـاد ئے همیشه مدام زمـا
چه اوراد ئے په هر صبح و شام زما
هر کلام چه بے د ستا له یاده اوکرم
سل توبے دی په هغـه کلام زمـا
بے له تا که زړۀ آرام کړم په سل رنګه
نۀ شی نۀ شی په هیڅ رنګ آرام زما
ننګ و نام که ستا په مینه له ما دروی
زار شه ستا ترمینے ننګ و نام زما
چه قائم شوم په مقام د عاشقئے
هیر شو دلته واړه بل مقام زما
و د عشق په خم خانه ئے داخل نۀ کړم
پخته نۀ دے دغـه عقل خـام زما

نن دِ وخت دے که بے آه و فریاد اورے
څو چه خاورے نهٔ دے هر اندام زما
هزار جام و صراحی دے فلک مات کړل
څو به گرځی په دا دور جام زما
زهٔ رحمٰن به دا ناکام گوم تر کومه
وایه کله به حاصل کړے کام زما

*۷*۷*

چه هر چا لیدلے نهٔ وی یار زما — خیر دے دا که وائی بد په کار زما
هر هغهٔ چه وی دلبر زما لیدلے — نهٔ به کا انشاء الله انکار زما
سر زما درگاه د هغه یار عزیز وی — بے له دے نشته دے بله لار زما
ما بے عشقه بل څه څیز زده کړے نهٔ دے — چه څه دے هم دا دے واړه کار زما
خدائے دِ یو له بله هیڅوک آزار نهٔ کا — اے دلبره ما خله تهٔ آزار زما
واړه ستا په جدائے او په ډیر غم کښے — سیند د اوښکو دروی پر رخسار زما
لوے، هلک کړی همه واړه ستا خبرے — گفتگوے نشته بل په دیار زما
زهٔ رحمٰن به لاف په عشق کښے څه وهمه
خود به ځان څرگند کا انتظار زما

*۸*۸*

سر زما سامان زما، زار شه تر جانان زما
زار شه تر جانان زما، سر زما سامان زما
زبان زما نقصان زما، واړه د یار هجر دے
واړه د یار هجر دے، زبان زما نقصان زما
مشک زما زعفران زما، ستا د کوڅے خاورے دی
ستا د کوڅے خاورے دی، مشک زما زعفران زما
گل زما ریحان زما، ستا د رخسار زلفے دی
ستا د رخسار زلفے دی، گل زما ریحان زما

فکر زما، ستا په غم کښې نه رسی
ستا په غم کښې نه رسی، فکر زما توان زما
آه زما فغان زما، هیڅ په تا اثر نه کا
هیڅ په تا اثر نه کا، آه زما فغان زما
ژړه زما چشمان زما، بې تا هیڅ حال نه لری
بې تا هیڅ حال نه لری، ژړه زما چشمان زما
دا پیران شیخان زما، ستا په غم کښې نه رسی
ستا په غم کښې نه رسی، دا پیران شیخان زما
باغ زما بوستان زما، بې تا میوه نه نیسی
بې تا میوه نه نیسی، باغ زما بوستان زما
وصل زما هجران زما، رحمانه واړه خیر دے
رحمانه واړه خیر دے، وصل زما هجران زما

*۹*۹*

بادشاهی لری هر یو غلام د ستا
د خاصانو په څانے ناپت وی عام د ستا
پخته کله دی چه لاړے د پختګئے کا
پختګان دی په دے غم کښې خام د ستا
خو هم همره نے نظر په ننګ و نام وی
چا چه نه وی اوریدلے نام د ستا
همیشه به له مقامه بے مقام وی
هغه څوک چه لټوی مقام د ستا
چه په خپلو وینو ګل غوندے غرق نه وی
وو به نه وینی رخسار ګلفام د ستا
صبح و شام په هغه خلقو بانده یو وی
چه آرزو لری هر صبح و شام د ستا

بل کلام نے په زړهٔ کله اثر کاندی
چه تر غوږ نے شی شیرین کلام د ستا

فراموش کاندی همه نورے مستئے
هر چه نوش کاندی باده په جام د ستا

دام دِ تا د تورو زلفو عالمګیر دے
تنها نهٔ یم نښتے زهٔ په دام د ستا

زهٔ رحمٰن دعا سلام په هغو وایم
هر چه ما لره راوړی سلام د ستا

*۱۰*۱۰*

هر چه اووینی په سترګو رویٔ د ستا
مخ نے کوږ وی همیشه په سویٔ د ستا

بے دماغه به تر سر و ماله تیر شی
چه نے تیر شی تر دماغه بویٔ د ستا

که لوئی کړی څه پیښایه خو نے نهٔ کړی
چه په دا رنګے قامت دے لویٔ د ستا

نوبهار دے عالم سیل د بوستان کاندی
خدائے و ما وته بوستان کړهٔ کویٔ د ستا

د عیسیٰ له دمه دم وهلے نهٔ شم
چه خولهٔ بیرته کړی په ګفتګویٔ د ستا

هم په دا بے له چشمانو رود بهیږی
چه یادیږی مے قامت دلجویٔ د ستا

همیشه نے زړهٔ په اور باندے سپند وی
و هغو ته چه څرګند شی خویٔ د ستا

د ارم لاشهٔ نے ماته وی په زړهٔ کښے
چه نے نقش وی په زړهٔ آبرویٔ د ستا

و زنځیر وته ئے څه لره راکاږے
لیونیو لره بس دے موئ د ستا
و ګړنګ وته پخپله ځان پرے باسی
چه و زړه وته پریباسی روئ د ستا
که ته سل ځله زما ئے او زه ستا یم
تلونے نه دے له ما جست و جوئ د ستا
ګل لنبه شو د بلبل په آه رحمانه
نه ګروهیری یار په های و هوئ د ستا

*۱۱*۱۱*

خوئ که په دا شان وی دل آزار ستا
څه بنادی به کاندی طلبګار ستا
حیف چه آوریدے شی لیدے نه شی
حسن و لطافت پریوار ستا
بیا دوباره نه ګوری و بل ته
هرچا چه لیدلے دے رخسار ستا
خدائے زده چه ته یار د کوم یوه ئے
هر خوا ته یاران دی صد هزار ستا
ځانے د پښو ایښودو موندهٔ نه شی
همره عاشقان دی په دربار ستا
بل به هسے نه وی که خدائے کاندی
ما غوندے خاکسار و هوادار ستا
بل ګمان په ما باندے اومکره
عمر واړه زهٔ او انتظار ستا
عشق له حسنه، حسن دے له عشقه
ته نګار زما ئے، زهٔ نګار ستا
ته زما مطلوب ئے زهٔ طالب یم
ته زما طبیب ئے زهٔ بیمار ستا
ته که تازه ګل د نوبهار ئے
زهٔ یم عندلیب په لاله‌زار ستا
جور دے که جفا دے که ستم دے
واړه مے منلی دی یکبار ستا
جور و جفا څوک په بها پلوری
زهٔ یم د جوروښو خریدار ستا
یو تار که ضائع شی ستا د زلفو
ځان به صدقه کړم په هر تار ستا
سل ځل آزمیښتونه دِ را وکړهٔ
حیف دے چه لا نهٔ شی اعتبار ستا
تیر یم زهٔ رحمٰن له هره کاره
اوس مے ملا تړلے ده په کار ستا

*۱۲*۱۲*

تهٔ شهلا ئے شکر لبَ — گل رخسارَ سیم غبغبَ
په نادرو کښې نادره — په عجبو کښې عجبَ
په جمله ؤ معشوقو کښې — بو العجب ئے منتخبَ
بے زېوره ښائسته ئے — بے ترتیبه مرتبَ
دغه داد د الٰهی دے — بے تالاشه بے طلبَ
آب حیات چه حیات بیا مومند — ستا له شونډو له سببَ
مخ دِ سپین تر سپین صبا دے — زلفے تورے تر تور شبَ
ستا د مخ عرق دانه ده — زینت داره له کوکبَ
د ښائست مخی دِ نشته — تر مشرقه تر مغربَ
د وصال موندهٔ دِ گران دی — مگر فضل شی له ربَ
چه د رب فضل پرے اوشی — هغه خلاص شی له غضبَ
دا دولت د خدائے په داد دے — موندهٔ نهٔ شی له نسبَ
عشق څه هسے علم نهٔ دے — چه حاصل شی له مکتبَ
مکتب حال د مذهب وائی — عشق سوا دے له مذهبَ
د عاشق مذهب هم دا دے — چه دم نهٔ وی بے مطلبَ

ستا د حسن په صفت کښې
رحمٰن گونگ شو له ادبَ

* ۱ * ۱۳ *

په هر زرهٔ چه د یار مینه شی غالبَ — بله مینه ئے هیڅ نهٔ وی مناسبَ
نورے واړه مرتبے به ورته هیڅ شی — که خبر شی څوک له هسے مراتبَ
لیاقت ئے هر وگړی سره نشته — عاشقی بوه پایه ده عجائبَ
د طالب له کوتاهئے نه ویره اوکړه — که هر څو دِ لار کوتاهَ ده طالبَ
عشق څرگنده خزانه ده خوار هغه شو — چه څرگنده خزانه شوه ترے غائبَ
غوره خط د مېرېبانو تر خط نشته — که هزار رنگ کتابونه کړی کاتبَ
هیڅ ئے مهٔ پوښته له فرضو له واجبو — په هغو چه عاشقی کړه خدائے واجبَ

عاشقان تر سر و ماله يار ته تير وي    خدائے دِ دا طائفه نهٔ کاندی کاذب

زهٔ رحمٰن د خپل صاحب په رضا زيست کړم
څه پکار دے دا بنده بے خپل صاحبه

* ۲ * ۱۴ *

لاس مے اوتړي د زلفو په طناب
بيا مے اوسپاري د سترګو په قصاب
هسے آب ئے د دے دوه سترګو په تيغ کښے
چه بے سره په سر نهٔ لري حباب
په توسن د فلک زين کاندي له نازه
دا هلال ئے په څائے راشي د رکاب
په درګاه ئے دروېزه کاندي د حسن
کندولي په لاس سپوږمئے هم آفتاب
چه په ياد کښے مے سرے شوندے سپين رخسار وي
له چشمانو مے بهيږي سرهٔ شهاب
چه د مخ و آب و تاب ته ئے نظر کړم
راته هيڅ شي د ګلونو آب و تاب
چه نسيم ئے د زلفينو را پيدا شي
درست مے ډوب کاندي په مښکو په ګلاب
چه د سپي آواز ئے واورم همره خوښ يم
لکه څوک په نغمه خوښ وي د رباب
ماوے مخ ئے ګوندے اوېنم په خوب کښے
بارے چرے شي بے ياره خورد و خواب
په غزل کښے خو دوه بيته انتخاب وي
د رحمٰن تمام غزل دے انتخاب

* ۳ * ۱۵ *

هر مطرب چه غوړوے تاؤ کا د رباب
په دا تاؤ کښې زما زړهٔ کاندی کباب
چه سامع ئے په نغمه په ترانه شم
دیوانه شم گریوان څیرے مست خراب
هم ئے تار هم ئے گفتار هسے اثر کا
چه هیڅوک ئے نهٔ طاقت لری نهٔ تاب
یو ئے ساز بل ئے آواز وی د لښتیو
دریم شعر پرے آغاز کړی انتخاب
څلورم ئے یو ساقی تر څنگه کښینی
چه مغ ئے نهٔ آفتاب وی نهٔ مهتاب
دا څلور واړه فتنے په څلور کنجه
او پنځم ئے صراحی د مئے و ناب
شپږم وخت د نوبهار اووم ځوانی وی
اتم شغل د کتاب نهم رباب
چه دا هره آفتونه سره تول شی
ترو څوک څه رنگ ځنے کاندی اجتناب
چه دا هسے دلبران پرے اثر نهٔ کا
یا به دیو یا به دیوار وی یا دواب
راځرکند به شی پرهیز د پرهیزگارو
که قادر شی په شاهد او په شراب
زهٔ رحمٰن د بیا له زهده پناه غوړم
د ریا زهد عذاب دے هم عتاب
*۱۶*۳*

ورځ د تیره په شومئے کړه شپه له خوابٔ
خدائے به کله یادوے خانه خرابٔ

په شتاب شتاب دِ تلهٔ دی که پوهیږے
غافل مهٔ شه د دے عمر له شتاب

دلته دم او قدم دواړه په حساب دی
پل غلط له لارے مهٔ ږده بے حساب

راسټولے خدائے حساب دے په کتاب کښے
خبر زده کړه له حسابه له کتاب

تهٔ و خپلو نیکو بدو ته نظر کا
چه بدی دِ څو تیرے ده له ثواب

په هغه جهان به څنګه خواب اوکړے
چه په دے جهان عاجز ئے له خواب

عاقبت به تورو خاورو لره درومے
ځان به څو ځندے په ګوته له تراب

د کاغذ په کشتئے سیل به کړے تر کومه
دا کشتئے به دِ مرګے کاندی غرقاب

چه آفتاب یوه نیزه شی بیا به څه کړے
اوس چه سوری له ورتښتے له آفتاب

په آزار د چا راضی مهٔ شه رحمانه
که خلاصے په قیامت غواړے له عذاب

* ۵ * ۱۷ *

ډ

په ورځ ناست ئے بے مطلب
په شپه خوب کړے بے ادب

لاس د اوښاتهٔ له دواړو
هم له روژه هم له شب

نهٔ دلے شوے نهٔ هورے شوے
تر منځ ډوب شوے مذبذب

عبادت دِ په ریا شو
په مذهب کښے بد مذهب

مدام بند ئے په سبب کښے
بے خبر له مسبب

واړه تشے شلونے شارے
خبر نهٔ شوے له مطلب

تهٔ اودهٔ وربانده‌ے سور ئے آس دِ یون کا بے جلب
تن دِ تش په توره وسوۓ آس دِ داغ کړو بے منصب
د راکب چه واک پردے شی سود ئے څه وی له مرکب
له ژوندیو سره ناست وی له مرده ؤ مرکب
هلک لوئے شوے په اوبو کښے اوبهٔ نهٔ پیژنے کب
لکه کانړے یا کودرے په دریاب کښے تشنه لب
نا آگاه ځان آگاه بولے دا خبره ده عجب
مراد له زهده معرفت دے نهٔ تش ځان وژل اقرب

د رحمان شراب له عشقه
نهٔ انګور نهٔ له عنب

*۱۸*٦*

زهٔ په سل رنګه راغب تهٔ په سل رنګه غائب
دا به څرنګ شی دلبره چه زهٔ مست یم تهٔ تائب
که له جوره دِ فریاد کړم دا هم نهٔ دی مناسب
که څه وایم نهٔ مے رسی زهٔ مغلوب یم تهٔ غالب
څه سیالی برابری ده د مطلوب او د طالب
دا ستا مهر و محبت کړو خدائے په ما بانده‌ے واجب
درد و غم دِ همره نهٔ دے چه ئے اوکښم په کاتب
جدائی ده ډیره سخته د ارواح او د قالب
چه مجنون په ځنکدن شو زهٔ ئے پریښودم نائب
وصیت ئے راته اوکړو په څو رنګه عجائب

چه روزی دِ شه رحمانه
زما واړه مراتب

*۱۹*۷*

مخ ته دِ که نمر واېم د نمر زلفے تار تار نشتہ
سرو ِ که دِ قد بولم د سرو ِ ئیون رفتار نشتہ
هر څوک چه دے ستا و آتشین رخسار ته ګل وائی
پوچ وائی د اور په مخکښے وقر د ګلزار نشتہ
زلفے دِ ناحقه خلق بولی په سنبل صنم
ولے چه له مښکو سره هیڅ د ګیاه کار نشتہ
ما چه غیړ په غوږو ستا د در د سپیو واؤرید
هسے رنګ بلبله په چمن کښے په ګفتار نشتہ
ستا دیدن هغه کا چه ئے سر په تنه پاس نهٔ وی
ولے چه د سر د څښتن حورو وته لار نشتہ
یار به د رقیب په لوری خدائے نهٔ کا وحشن سم
ولے چه د سپیو فرښتو سره څه کار نشتہ

*۱۲۰*

که د عقل څه اثر لرے و سر ته
لاس په سر مهٔ شه د هر ګیډی و دو تہ
په نظر د هغو خاورے سرۀ زر کیږی
هر چه نهٔ لری نظر و سیم زر تہ
بے منته جام د زهرو څښلے ښهٔ دے
نهٔ هغه چه منت باز شی و کوثر تہ
د یوسف (ع) له حاله زده کړه دغه پسه
وایه حال د زمانے و برادر تہ
دے فلک و چا ته هیڅ بخښلی نهٔ دی
چه ئے نهٔ دی راپیرودی څنے بیر تہ
د خروار دعوی ئے اوکړه ممکنه
که رتئے یا جودانه به ئے وی در تہ

تهٔ اودهٔ وربانده ے سور ئے — آس دِ یون کا بے جلب
تن دِ تش په توره وسوو — آس دِ داغ کړو بے منصب
د راکب چه واک پرده ے شی — سود ئے څه وی له مرکب
له ژوندیو سره ناست وی — له مرده ؤ مرکب
هلک لوئے شوے په اوبو کښیے — اوبهٔ نهٔ پیژنے کب
لکه کانړے یا کوټړے — په دریاب کښیے تشنه لب
نا آګاه څان آګاه بولے — دا خبره ده عجب
مراد له زهده معرفت دے — نهٔ تش څان وژل اقرب

د رحمان شراب له عشقه
نهٔ انګور نهٔ له عنب

*۶*۱۸*

زهٔ په سل رنګه راغب — تهٔ په سل رنګه غائب
دا به څرنګ شی دلبره — چه زهٔ مست یم تهٔ تائب
که له جوره دِ فریاد کړم — دا هم نهٔ دی مناسب
که څه وایم نهٔ مے رسی — زهٔ مغلوب یم تهٔ غالب
څه سیالی برابری ده — د مطلوب او د طالب
دا لمنا مهر و محبت کړو — خدائے په ما بانده ے واجب
درد و غم دِ همره نهٔ دے — چه ئے اوکښم په کاتب
جدائی ده ډیره سخته — د ارواح او د قالب
چه مجنون په څنکدن شو — زهٔ ئے پریښودم نائب
وصیت ئے راته اوکړو — په څو رنګه عجائب

چه روزی دِ شه رحمانه
زما واړه مراتب

*۷*۱۹*

مخ ته دِ که نمر وایم د نمر زلفے تار تار نشتہ
سرو دِ که دِ قد بولم د سروِ یون رفتار نشتہ
هر څوک چه دے ستا و آتشین رخسار ته ګل وائی
پوچ وائی د اور په مخکښے وقر د ګلزار نشتہ
زلفے دِ ناحقه خلق بولی په سنبل صنم
ولے چه له سنبکو سره هیڅ د ګیاه کار نشتہ
ما چه غږ په غوږو ستا د در د سپیو واورید
هسے رنګ بلبله په چمن کښے په ګفتار نشتہ
ستا دیدن هغه کا چه ئے سر په تنه پاس نهٔ وی
ولے چه د سر د ښښتن حورو وته لاء نشتہ
یار به د رقیب په لوری خدائے نهٔ کا رحمٰن سم
ولے چه د سپیو فرښتو سره څه کار نشتہ

*۱۲۰*

که د عقل څه اثر لرے و سر ته
لاس په سر مهٔ شه د هر ګیډی و در ته
په نظر د هغو خاورے سرهٔ زر کیږی
هر چه نهٔ لری نظر و سیم زر ته
بے منته جام د زهرو ښښلے بهٔ دے
نهٔ هغه چه منت بار شی و کوثر ته
د یوسف (ع) له حاله زده کړه دغه پسه
وایه حال د زمانے و برادر ته
دے فلک و چا ته هیڅ بخښلی نهٔ دی
چه ئے نهٔ دی راپیرودی څنے بیر ته
د خروار دعوی ئے اوکړه ممکنه
که رتئے یا جودانه به ئے وی در ته

کہ د خدایہ دِ و خلقو وتہ سخ شی
لہ فردوسؔ بہ دِ مخ شی و مقرتؔ
همیشہ بہ در پہ در گرځی رتلے
د آستوږنے ځائے بہ پیا نہ موی چرتؔ
د دے سست بدن منت پہ رحهن باندے
چہ لہ خپلہ درہ تلے نہٗ شی بل درتؔ

* ۲۱ * ۲ *

ما د دهر غم وهلے دے پہ لتؔ
د پیالے د صراحۍ لہ برکتؔ
کہ اوبہٗ دی د حیاتو پہ تورتم کښے
ستا د رویہ و راکړی بے ظلمتؔ
هغہ یار چہ و ما جام د میو راکړۀ
د دښنو وینے مے وڅښے بے شربتؔ
بے خودئے د دنیا لہ غمہ خلاص کرم
لار مے بیاموندہ بیرون لہ شش جهتؔ
د دښمن پہ دښمنئے مے خدا کیږی
لکہ شمعؔ د مقراض لہ خصومتؔ
بے خیری مے کل پہ خیر باندے شمیرلے
د زمری پہ خولہ کښے ناست یم فراغتؔ
مړ بهتر دے تر هغہ چہ څوک بے پت وی
پہ یارئے کښے دِ څوک نہٗ کا خدائے بے پتؔ
دا ستئے چہ پہ اور سوزی مراد ئے دا وی
زۀ پہ اور کښے سوے نہٗ یم نہٗ بے پتؔ
خدائے هالہ د مړی یاد شی چہ دردمند شی
کمہ نہٗ دہ دردمندی لہ عبادتؔ

زهٔ رحمان په سل حلقو د زلفو بند يم
لا د پاسه سور پيزوان شو بله نت

* ۲۲ * ۳ *

ستا په مخکښې چه حساب د جمال نشته
څکه ما سره د صبر مجال نشته

ته د سر او د مال ويره په ما مهٔ کړه
ويره ما څخه د سر و د مال نشته

زهٔ په دا سبب له ويرے سره ريږدم
چه ستا ويره کښې ثواب دے وبال نشته

که وعده د بوسے چارے بو ساعت کړے
هغے چارے امید مے په کال نشته

د شهيدو حال ته ګوره حال ئے څه دے
بے تا هسے زما حال دے بل حال نشته

روښنائی مے د چشمانو ستا ديدن دے
په دا کور کښې بل چراغ و مشال نشته

په جوئی بار زما د سترګو سرو ته ئے
په دا نهر بانده بل څه نهال نشته

مخ دِ بے خط و بے خاله هسے زيب کا
چه ئے هيڅ حاجت په خط و په خال نشته

مخامخ که راتهٔ اوګورے دلبره
په کاته کښې دِ ثواب دے وبال نشته

د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال دے
ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشته

ستا په يادو کښېنے رحمٰن هسے مشغول دے
چه په زړهٔ کښېنے ئے هيڅ غم د وصال نشتہ

* ۲۳ * ۳ *

چه نظر کړم د خوبانو و رخسار ته
آئينے غوندے حيران شم و دے کار ته
له دهشته ئے ربيار پوښتيدے نهٔ شم
خدائے زده څه به ئے وئيلي وی ربيار ته
خلوتيان لکه پرده پکښېنے خرڅيږی
غيږ ئے نهٔ خيژی د حسن و بازار ته
تهٔ به ما پوښتے د يار له حقيقت
څوک د يار خبرے کاندی و اغيار ته
درد و غم د عاشقئ څه همره نهٔ دے
چه ئے عقل د چا رسی و مقدار ته
زړهٔ و يار چه خپل غمونه سره شمار کړو
يار و ما ته حيرانيږی زړهٔ و يار ته
رحمٰن هسے وزګار چرے دے له عشقه
چه غوږ ونيسی ناصح غوندے وزګار ته

* ۲۴ * ۵ *

د وصال شپه مے بدله په بيلتون شوه الغياث
د قيامت خواری را پيښه په ژوندون شوه الغياث
ما لا طمع د وصال د نعمتونو ترے کوله
ناګهان پياله نسکوره د ګردون شوه الغياث
هغه چار چه مے په لاس وه زړهٔ پرے نهٔ وم پوهيدلے
اوس چه پوه شوم له اختياره مے بيرون شوه الغيات

د وصال په طمع طوق د جدائے شو را په غاړه
هغه طمع چه زما وه اوس طاعون شوه الغياث
په حکمت په عقل پيتې د عشق څوک اخستے نهٔ شي
په دا کار کښې ماته ملا د افلاطون شوه الغياث
ما رحمٰن د يار وصال په آشنائي موندلے نهٔ دے
زرد روئي مې سرخروئي په جګر خون شوه الغياث

*۱*۲۵*

يار ياري راسره نهٔ کا الغياث
نهٔ ئے ترس شي نهٔ ئے کړکه الغياث
سر و مال واړه زما و دل آرام ته
نهٔ ارزيږي په کنجکه الغياث
په حملو حملو مې زړهٔ وري نهٔ پوهيږم
آفريدئے ده که حتکه الغياث
څو چه راکاږي چوګان په مخ د زلفو
ګوئے زما دا خراب زړهٔ که الغياث
بيلتانهٔ ئے پيښور راته تنور کړو
له خيبره تر اټکه الغياث
هيڅ سبب ئے موندے نهٔ شي جفا کاندي
نهٔ پوهيږم چه په څه که الغياث
په اخلاص و په راستئے ورته ولاړ يم
يار جفا همره په څه که الغياث
سل خبرے که له صدقه ورته اوکړم
يار يوه راسره نهٔ که الغياث
چه مې ويني له رقيبه سره خاندي
په ژړا مې ليمه سرهٔ که الغياث
زهٔ رحمٰن مدام د يار په رضا دروسم
يار په خپله رضا تلهٔ که الغياث

*۲*۲۶*

---

تا څو زده زما د زړهٔ له احتياج
نور مې څه پوښتے چه څه غواړے محتاج
د طالب د مطلوب راز به ما در اوښود
که ته نهٔ وے خبردار له دے رواج

یار که یار ته حال په خوله نهٔ وائی څه شو
و حکیم ته پټ څرګند وی له مزاج

که زما له حاله ما پوښتے حال دا دے
چه بے تا بے ورځ تیارهٔ ده تر شب داج

آشنائی به ما په کوم قوت کوله
که خبر وے ستا د هجر له تاراج

که په سلو کښیے یو خواست د چا قبلیږی
خدائے دِ هیڅوک رنځور نهٔ کا بے علاج

په رحمٰن بلا پسے که زهیریږی
تهٔ مشغول اوسے له خپله تخت و تاج

* ۱۲۷ *

۱

په طلب د مهرویانو سرګردان دے زما روح
لکه بادِ د ګل په بوئ پسے پریشان دے زما روح

ستا د حسن و آفتاب ته چه سپارلے ځان شبنم دے
لکه صبح د ژړا په ځائے خندان دے زما روح

چه مے ستا د جمال عکس دے لیدلے په خپل ځان کښیے
هم په دا د ائینے په څیر حیران دے زما روح

ستا د مخ د آئینے له برکته زما جانه
همیشه لکه طوطی هسے ګویان دے زما روح

لکه رنګ د میو ناب چه لیدے شی په بنینه کښیے
هسے رنګ په ضعیف تن کښیے نمایان دے زما روح

منتظر یم د وصال و ګلستان ته تل تر تله
سر تر پایه د شبنم په څیر چشمان دے زما روح

چه حاصله ہے له حسنه روښنائی شوه په طلب کښې
شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دے زما روح

ستا په زلفو په رخسار پسے رحمٰن شو بے وطنه
مسافر د هندوستان د خراسان دے زما روح

*۱*۲۸*

ستا وصال دے را بخښلے زما روح
ستا هجران دے را پرودلے زما روح
ستا په مخ پسے مے درست وجود راهی شو
له صورته دے وتلے زما روح
چه هرگز ملک الموت پرے نهٔ پوهیږی
پسے شان دے تا وکښلے زما روح
ځان ئے هسے ستا په مینه پسے ورک کړو
چه هیچا نهٔ دے موندلے زما روح
که وی هم به تا څخه وی که خدائے کاندی
نهٔ دے بله خوا ته تللے زما روح
بلبل نهٔ دے دا چه الوزی په گلو
ستا په لور دے الوتلے زما روح
چه ئے خاورے کړهٔ صورت و ستا په در کښې
سر تر عرش دے وکښلے زما روح
ته ئے پیژنے چه څه دے یا څه نهٔ دے
نور چا نهٔ دے پیژندلے زما روح
زهٔ رحمٰن له خپله یاره خبر نهٔ یم
چه ئے څه شان دے کوتلے زما روح

*۲*۲۹*

کله شو لا کله خریدار یم ستا د مخ
تیر تر سر و ماله په بازار یم ستا د مخ
بې دا ستا له مخه نور مې هیڅ په مخکښې نشته
هسې رنګ نتلې په بنا تار یم ستا د مخ
هیڅ په ستر ګو نهٔ وینم دا خپل صورت چه ګوم دے
ډوب تر هسې حده په انوار یم ستا د مخ
درد و آه اوکاږم بهانه د تماکو کړم
سوے لوغړن مدام په نار یم ستا د مخ
نور وکړی واړه همګی د دنیا کار کا
زهٔ همیشه غرق په انتظار یم ستا د مخ
شکر چه ئے خلاص کړم د نورو خلقو له منته
سر په سجده ایښیې منت بار یم ستا د مخ
هره خوا چه دروسم زهٔ رحمٰن د زړهٔ په سیل
بل مطلب مې نشته طلبګار یم ستا د مخ
*۱۳۰*

ما سحر صبا لیدلې وو د چا مخ
چه مې درسته ورځ او نهٔ لیدو دا ستا مخ
دا خو مخ زما و تا وته خدائے هیڅ کړو
ګنړه هر یو آشنا ګوری د آشنا مخ
ډیر مخونه دِ جفا دِ را څرګند کړل
لا به کله را څرګند کړے د وفا مخ
څو د مرګ په تماچه آوښتے نهٔ دے
آوښتو لۀ له تا مهٔ ګنړه زما مخ
زهٔ به تا پسے راغلے په دا مخ یم
که ته نهٔ وے ما به څه کول په دا مخ

ما به څه لره په تا پسے ژړا کړه
که سوندلے شوے بل ستا په څیر زیبا مخ
د رقیب طمع بے نهٔ وه ستا په در کښیے
په جنت کښیے دے را اوښود د بلا مخ
زهٔ به څه رنګ د رقیب و مخ ته ګورم
ګله اهلِ سنت ګوری د ترسا مخ
د چکنا چکنئے بیلتون په نیمه شپه وی
ستا زما په حال غماز شو د صبا مخ

رحمان ستا په مخ دا ورانه دنیا ګوری
خدائے بے تا ور څرګند مهٔ کړه د دنیا مخ

*۲۳۱*

---

ولے تللے ئے لهٔ ما مدام په څ
ترهیدلے ئے هر صبح و شام په څ
زهٔ هر صبح و شام دعا کوم و تا ته
تهٔ و ما وته کوے دشنام په څ
همیشه لکه وحشی په وحشت ګرځے
یو ساعت راسره نهٔ ئے رام په څ
همیشه را څخه دروبے مخ په وړاندے
لکه عمر بیرته نهٔ ږدے ګام په څ
راته وایه زهٔ به هم هغه کومه
غمازانو ته بخښیے انعام په څ
لږ پرهیز کړه له رقیبه خدائے د پاره
ګڼه وے سره حلال حرام په څ

رحمان ستا په مخ بې سترو هم مئين دے
بې هوده دِ ورته کيښود دام په څ

*۱*۳۲*

ولے نۀ کورے و ما ته سم په څ
زباته‌وے. د غمزده وُ غم په څ

ستا په غم کښے چه ما وينی عالم ژاړی
ژړه‌وے را سره نور عالم په څ

په مطلب دِ د سرو شونډو نۀ پوهيږم
چه مے وينے د زړۀ ځښبی هر دم په څ

ستمگار چه ستم کاندی څه بهانۀ کا
ته په ما باندے کوے ستم په څ

مکره خدائے چه څوک بے ياره خوش خرم وی
زۀ به اوسم بے تا خوش خرم په څ

لږ ے اوپوښته چه حال ئے د زړۀ څه دے
د رحمان له سترګو څاځی نم په څ

و دے خپلو برندو سترګو ته دِ وايه
چه دا وژنی مے قلم قلم په څ

رحمان خود په خپله کرم يم چه مئين شوم
ولے نور عالم مے بولی کرم په څ

*۲*۳۳*

که څه وايم له هجرانه وايم څ
له دے درده بے درمانه وايم څ

توان د دم وهلو نۀ لرم و يار ته
چه توان نۀ لرم بے توانه وايم څ

چه ئے او وينم له ځانه خبر نۀ يم
چه خبر نۀ يم له ځانه وايم څ

دغه دل زړۀ له حاله هيڅ راوئيل نۀ شی
له بے نامه بے نشانه وايم څ

| | |
|---|---|
| د عشق راز چه هیچا نهٔ دے بیان کړے | ترو به زهٔ له بے بیانه وایم ځ |
| د خپل یار له غمه درست په اوښکو ډوب یم | له دے هسے رنگ طوفانه وایم ځ |
| زهٔ چه پروت یم د هجران په تنارهٔ کښے | د وصال له گلستانه وایم ځ |
| سروسال د سړی لوټ کړی زړهٔ ئے یوسی | له دے هسے دلستانه وایم ځ |
| زاغان یولی بلبلان شړی له باغ | د دے دهر له باغبانه وایم ځ |

هر چه وایم تر همه وارو بهتر دے
زهٔ رحمٰن به له جانانه وایم ځ

*۳*۳۴*

---

غم دے هسے غلبه نو په ما باندِ
چه مے ځائے نهٔ شی دننه نهٔ د باندِ
له زویرگو نه مے نور خلق په عذاب شول
تل د اوچو له کبله سوزی تاندِ
زهٔ دا ستا په غم کښے شمع غوندے ژاړم
تهٔ زما په غم کښے صبح غوندے خاندِ
زړهٔ مے ستا په لوری هسے آویزان دے
لکه زلفے دِ په مخ دی آویزاندِ
ما دی ستا د اندیښنو په اور کښے سوی
د دنیا اندیښنے واړه لکه سپاندِ
دا دستور دے چه لوئے غم په سری ورشی
نور غمونه ئے همه شی د پښو لاندِ
هر چه ما په نصیحت له تا جار باسی
بیا دوئ ستا په لوری درومی له ما وراندِ
سره لنبه گوره چه څه کړی په اوچ ډک
مخ د یار په رحمٰن هسے چارے کاندِ

*۱*۳۵*

څه شو که خاموش یم ستا د عشق له آه سرکړ | ستا زما له مینې خلقه واره خبر کړ
هیڅوک دې په خوله د عاشقئ لاف مونه کا | کنه هم پټیږي وچې شونډې کونه زرکړ
اهل د دنیا واړه نامرد دي رنګې ورک شه | خدائې دې ملاقات د هیچا نۀ کا له نامرکړ
کله بې دردانو لره زړۀ د چا ور دږیږي | زړۀ به صدقه کړم سل بې درد ترا هل دردکړ
بې د ستا د عشق د شهیدانو له خاکدان | کله زرغونیږي سرۀ لاله له هره ګرکړ

یو خوشحال یو کم سل خټک نور په طبیعت کښیې
زار شه د رحمٰن سره بنی له یوه فردکړ

*۲*۳۶*

که زما مینه په تا ده خطا نۀ کړ
که بې تا ده ناروا ده روا نۀ کړ
څوک چه بې دا ستا له مخه بل ته ګوري
آئینه ئې نا صفا ده صفا نۀ کړ
هر عاشق چه په خپل یار پسې ژړا کا
دا ژړا واره خندا ده ژړا نۀ کړ
د دنیا په تماشه چه څوک نازیږي
خو هم نن ئې تماشا ده صبا نۀ کړ
که تۀ سل ځله له ما سره جفا کړې
ستا جفا واره وفا ده جفا نۀ کړ
هغه تیر شو چه مې مینه په غلا کړه
اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نۀ کړ

معشوقه که د خپل سر په بها موسي
و رحمٰن وته ویړیا ده بها نۀ کړ

*۳*۳۷*

له اغیار سره خندا څه په کار نهٔ ده
له اغیار سره سودا څه په کار نهٔ ده

سل یارئے د یوهٔ یار د پاره کیږی
آشنائی د هر آشنا څه په کار نهٔ ده

هر بلبل به دے ثنا کا که تهٔ ګل شے
په خپل شان خپله ثنا څه په کار نهٔ ده

عشق د بوئ په څیر په پټه خولهٔ څرګند وی
په دا چارو کښے غوغا څه په کار نهٔ ده

د عشق درد واړه عاشق لره راحت دے
د دے هسے رنځ دوا څه په کار نهٔ ده

بد له بدو سره بویه نیک له نیکو
د جفا په ځائے وفا څه په کار نهٔ ده

عاشقی حرص و هوا دی سره لرے
د بیمار په ځائے هوا څه په کار نهٔ ده

عاشقی یو نادر کار دے په جهان کښے
ولے بے خدایه سودا څه په کار نهٔ ده

که ئے کرم هم ئے هیڅ نهٔ ګڼړم سوګند دے
وابستګی د دے دنیا څه په کار نهٔ ده

د دنیا مینه بے کاره آوریدے شی
چه مے اولیده رښتیا څه په کار نهٔ ده

که رحمٰن په جهان ډیر پایم دلبره
زندګی زما بے تا څه په کار نهٔ ده

* ۴ * ۳۸ *

ګوره بيا به څوک د ادا کا په زړهٔ غوندّ
چه دا هسے مستــه دروسي مخ بربندّ
تهٔ چه ګل د اشـنائۍ له باغ ّ غواړے
خبر زده کړه د هجران له خار و خندّ
ما رستم د زمانے اوليد په سترګو
چه د يار له جوره ژاړي لکه ګندّ
طالبان که سرور دي هم پخـلا دي
بے مطلوبه د چا نهٔ رسي دا هندّ
د عاشق د لاغرۍ سبب هم دا وي
چه فرقه د معشوقو شوه په زړهٔ تندّ
زهٔ به حورے د جنت بے ياره څه کړم
خدائے دِ سروے د چا نهٔ کاندي ارهندّ
سخت ساعت د بيلتانهٔ به مے هير نهٔ شي
که را ډکه شي د تور لحد ګورهندّ
زهٔ رحمٰن د هغـه حسن ثنا خوان يم
چه جرګه د عاشقانو وي پرے پنـدّ

* ۱ * ۳۹ *

چه مے يار اوليد په سيمه د اغيـار ګډ
له غيرته مے ليمهٔ شو په خونبار ګډ
دغه حق د بلبـلانو په جانب دے
خدائے دِ نهٔ کا سبنکيرک په لاله زار ګډ
زهٔ په وصل کښيے هجران هسے پيخم
لکه څوک چه خالي لاس وي په بازار ګډ
په اميد د زلفو اونښتم په دام کښيے
روهيلے ووم ستا د دل په هندوبار ګډ

. دیدن په ګدائیږے که مے ننګ نهٔ شی
درویزګـر ووم د ښـانو په بازار ګډ
د وفا د ګلو ہانړے پکښے نشـته
کاشکے مهٔ وے د دے دهر په ګلذار ګډ
زړهٔ مے بے له خپل نګاره آرام نهٔ کا
که هر څو ئے ګرم په نقش په نګار ګډ
که په خوا تر آشنائیږے بیلتون لیدے شوے
هیڅ بنده به د خدائے نهٔ وو په دا کار ګډ
زهٔ رحمٰن ئے د فردوس له غمه خلاص کړم
چه به کلی په کوڅه شوم د خپل یار ګډ

*۲*۳۰*

په هر ځائے چه ستا ثنا شی بیوه کړ
خر مهـرے شی هلـته ڈر و مرغلر
د هغو سترګو به اوښکے وی ګلرنګ
هر چه ستا په ګل رخسار وی منتظر
هغـه کله د ناصح خبرے اوری
هـر چه آوری ستا خوږے خوږے خبر
مرور کاندے عـاشق له جمـله خلقو
معشوقے له هیچـا مهٔ شـه مرور
په ساعت کښیږے سرے مړ کا هم ژوندے کا
طا ئفے دی د خـو بانو سحـر کړ
زهٔ ځان ډوب ګنړم بے تا په خپلو وینو
که مے ډوب کا څوک په شهدو په شکر

لرے لرے غم دِ واړه را نزدے کړو
چه له مخه دِ حجاب کړو راته لرِ

چه مے نوم د ستا د زلفو په خوله واخست
را پسے شوے د بلا تورے لښکرِ

هیڅ په حق د حقدارانو نهٔ کړو هیری
همیشه زما د زړهٔ په وړو منکرِ

زما ستا مینه څرګنده په جهان ده
ولے دا رنګه څرګند ګواهی نغرِ

زهٔ چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کرم
د رقیب کره هم دول وی هم سندرِ

چه میوے نے د کابل خوړلے نهٔ وی
د هغو له فهمه وځکے شی ګور ګورِ

د رندو سترګو حاجت د رانجهٔ نهٔ وی
په بدرنګے ناوے به څوک څه وائی سندرِ

که په غرهٔ په سمه ګرځم باک مے نشته
مزری تل ګرځی په لورے په زورِ

د رحمٰن شعر به ولے نادر نهٔ وی
چه ثنا کاندی د تا غوندے نادرِ

*۱*۳۱*

غمخوري دا شے چرته وی غمخورِ
چه به ما دلته کښے ناست لرے تهٔ دورِ

هغه خدائے چه ئے سته سخ بله لنبه کړه
دا لنبه ئے کړه زما په ګوګل پورِ

هم هغه دے زما تور ليمه ئے سره کړه
چه ئے ستا لاسونه سره کړل سترګے تور
غل خو غلا د سر و مال په توره شپه کا
ته په ورځ زما د سر و د مال چور
اصيل نه دے چا پيرودے نه پلورے
ته اصيل په ديدن پېرے هم ئے پلور
دا کوم رنګ د اشنائۍ او د رورۍ دے
چه زه ستا د مخ ثنا کړم ته مے زور
دېرخانۍ په سل غمونو خدائے اخته کړه
زه به ولے له تا زار کوم که کور
زه و تا وته د ستـا له جوره ژاړم
ته را واخلے سل ګيلے نادرے نور
د رحمان په عاشقۍ به آفرين کړے
که لېر مخ په آئينه کړے ځان اوکور

* ۲ * ۴۲ *

ستا په عشق کښے دروغژن يم سر تر سره
چه له غمه دِ ژوندے کـړم دلبره
زه به ستا له غمه کله شو لا مړ ووم
بارے ګم د خدائے په لاس دے نازپروره
شام سحر مے دغه ستا زلفے رخسار دی
نور مے مه پوښته له شام و له سحره
چه خبر ئے په وصال او په هجران شوم
خبر نه يم له فردوسه له سقره
جدائي به مے يو دم قبوله نه کړه
که چا مرګ او يولتون اېښے وے په غوره

هو هنر مې منظور ستا په هنر نهٔ شو
که زهٔ اوکرم ستا په عشق کښې سل هنر
بې د ستا له مخه ورځ را باندې شپه ده
روښنائي د ورځې چرې وی بې نمر
هسې بې سر و سامانه هيڅوک نشته
لکه زهٔ چه بې سامانه يم بې سر
هيڅ اثر د رحمٰن اوښکې په يار نهٔ کا
خدائے دِ اوښکې د چا نهٔ کړی بې اثر

* ۳ * ۴۳ *

نهٔ رسيږی ستا و حسن وته حور
څه به رسی و ميرمن وته مزدور
ستا تر قده تر قامته نهٔ رسيږی
که نښتر که سپاری وی که کجور
تر قامت پورې دِ سروې ده سر کوزې
تر رخسار پورې دِ شمع ده بې نور
هر سړې چه دِ و حسن ته نظر کا
ښاپيری ئې په نظر وی نا منظور
چه تا مئے د خپلو شونډو ور په خولهٔ کړو
طائفه دِ د صوفيانو کړه مخمور
اوس نهٔ وايه چه په څه رنګ دِ اوستايم
زهٔ خو ستا په مينه لارم له شعور
دا جذبه د عاشقئې نهٔ ده نور څه ده
کڼره کله څوک وته شی له دستور
اوس به زهٔ د شب خيزئ څه منت اوکرم
چه څهره دِ کړه به خوب کښې را حضور

چه په ننګ و په ناموس تر ګلوره کم وی
صدقه شه ـ ناقابله ځوئے له ګلورَ
که سل ځله ځوئے غوره وی تر ګلوره
خدائے دِ مور کا په دا هسے ځوئے بورَ
ننګیالی تربرونه ښۀ دی او که نۀ وی
ننګیالئے ترلۀ هم ښه دے له تربورَ
خوبروئی بے دلبرئے څه په کار نۀ ده
لکه اونه بے میوے په پانړو کورَ
که د غلوزے لباس اوکا شـزا اوشوه
شهد نۀ دی چا موندلی بے زنبورَ
په رحمٰن د ښائستۀ قدر ډیر دے
د طبیب له قدره چا زده بے رنځورَ
* * *

پورته بدر را ښکاره شو ښکته نمر
ښکته پورته واړه مخ دے د دلبر
نمر سپوږمئے مے د پالنګ د پاسه رغړی
چه مے یار په بالښت اولګوی سر
په سرو سپینو ګدر و لعلو ئے غوږ ډک شی
چه مے غوږ کاندی د اوښکو په دُر دُر
چه دِ اوویښم په مخ مے اوښکے دروی
لکه موم چه په آفتاب شی برابر
بل مذکور د سخنګویو سترګو نۀ زده
بے له دے ذکره چه الله اکبر
ضد دی اور اوبۀ بے د یار له شونډو
چه هم اور دے هم اوبۀ دی د کوثر

په شرابو کښې خوند نشته د شکرو
د یار شونډې هم شراب دي هم شکر
که سل ځله پټ تر شونډو لاندې خاندي
نۀ پټیږي آب د لعل و د ګوهر
دا خو ما لره خدائے را کړه ګنړه نشته
هسې بت په بت خـانه کښې د آذر
پس له دے به ئے په نام د ملک بولم
هم په دا چـه نشته دا رنګـ بشر
که رحمٰن صاحب‌نظر بالۀ شي بناءُ
چـه مـدام د یار په مخ لـري نظـر
*۵ * ۴۵ *

په بزرګئے د هغه پاکـ پروردګار
موقوف نۀ شه په سري د سري کار
په سري چه د سري غرض موقوف شي
نـور بے آبه بے حرمتـه شه روزګار
احتیاج هسے بلا ده په جهان کښې
چه پلار ځوئے کاندي د ځوئے، او ځوئے د پلار
زمانـه هسے بے مخـه ده بے رویـه
چه غالب کا په اسلام باندے کفار
په ساعت کښې ګدا شاه کا شاه ګدا کا
دا فلکـ ځکه بالا شي کج رفتـار
چه همه عمر ئے تاج وي په سر اینبے!
ور په سر کاندي ګیدے د خس و خار
چه قادر نۀ په درم نۀ په دینار وي
په هغـو باندے ګنجونـه کا انبـار

زمانے د رحمٰن زړۀ دے کباب کړے
له احواله ئې څوک نۀ دی خبردار

*۶*۴۶*

تل به نۀ وی شگفته بازار د عمر
نۀ به جوړ وی همیشه بهار د عمر

لکه سیند د اباسینډ په غورزنگ درومی
هسے یون دے په تلوار تلوار د عمر

لکه برق چه مخ څرگند کاندی بیانۀ وی
هسے تیز دے بے سکون رفتار د عمر

سرکشئے لرے تر هسے حده پورے
چه نیوے نۀ شی هیڅوک مهار د عمر

چه سمند ئې نۀ جلب لری نۀ واړے
خو به پریوزی عاقبت شهسوار د عمر

په ساعت د سلو کالو یاری پرے کا
بےوفا په هسے رنگ دے یار د عمر

خپل صورت به د حباب په څیر او نورے
که څوک وکاندی په زړۀ کښې شمار : عمر

نۀ له کوره چرته څمه نۀ سفر کړم
بے سفره سے غوځیږی لار د عمر

عاقبت به د اجل په مقراض غوڅ شی
پیوسته به مدام نۀ وی تار د عمر

بیا ئې وار په دنیا نشته دے رحمانه
په هر چا باندے چه تیر شی وار د عمر

*۷*۴۷*

وخت د نوبهار دے زۀ جدا له خپله یارٓ
دریغه دریغه چه بے یاره شی بهارٓ

اور د خوږو زړونو چه د غرۀ په سر لگیږی
شنے لوخړے خیژی له نښتره له چنارٓ

دا څه عاجزی ده چه زۀ کښم په کاغذ باندے
راشه اوویریږه د عاشق له دل آزارٓ

دا څه اوښکے نۀ دی چه بهیږی له چشمانو
وینے دی بهیږی د زړ کوتی له پرهارٓ

رنځ مے هسے سخت دے هر زمان په ما زیاتیږی
راشه اے طبیبه کوندے مرم د رب د پارٓ

غرونه دی نریږی چه په حال زما خبرېږی
سیند د اوښکو دروسی چه راغلے له کهسارؔ
نور څه نهٔ دی دا نارے د بېلتانهٔ دی
راشه که ئے آورے د رباب له هره تارؔ
زهٔ یو خوار و زار همه رحمٰن په عاشقئے کښے
خپل دے که پردے دے راته نهٔ کوری له عارؔ
*۸*۴۸*

پس له مرګه که څوک ارت غواړی خپل ګور
که حق وایم دومره ارت دے بویه کور
تر ځان زیاته کمه چار څه په کار نهٔ ده
ځان په لویشت کړه چه دے څو دے اوږد سور
که جامه د چا کوتاه شی یا اوږده شی
ورکاوه شی هنرمند لره پیغور
هر سړے چه په حساب کښے تیر و بیر شی
ملامت پرے وایهٔ کیږی لور په لور
چه لائق د ملامت او د تهمت شی
ځائے لری که ملامت شی هم سرتور
چه عزت حرمت ئے لهٔ وی په جهان کښے
هغه هسے ژوندون اوسوزه په اور
بے عزت سړے به خوښ د هیچا نهٔ وی
مګر هسے بے عزت وی ځنے نور
خپل مجلس ئے تر جمله مجلسه خوښ وی
په هر ځائے چه سره جمع شی خمسور
هر همجنس د خپل همجنس سره جوړه وی
زیب کا هره کشیده په خپل انځور

که ته نه ئے بد کرداره بد لمنه
کښیے دِ منه بد کردار سړے په غور

نا بینا په خپله سیمه کښیے بینا وی
بینایان په پردی ملک شی کرو کور

درست صورت د یوۀ نوک په درد دردمند شی
وران شی ښهر د یوۀ سړی په تور

چه یو غابښ په خوله کښیے زوړ شی یا اووزی
درسته خولهٔ پرے بدنمایه شی هرکور

یو سړے چه په کورمه کښیے د چا بد شی
واره بد شی که پنځه وی یا څلور

بدکرداره څوڅے پیدا مه شه له موره
حبطه کاندی ناموس د پلار و مور

هر څوک خپله خوشنودی له خدایه غواړی
قبارے نه شی دغه کار په زر و زور

خدائے په خپل قدرت څوک لوئے او څوک هلک کړۀ
نه چه هر ښهر دهلے شی یا لاهور

د چا تاج زرین په سر تر ملا خنجر وی
د چا پند په سر، په ملا توبلے لور

څوک د آس د پاسهٔ سور توغ د ورانده
څوک وبرکلے کرزاوۀ شی په خر سور

د تنکو پوروونه هر څوک وبل کاندی
بخت هیچا ورکړے نه دے چا له پور

اے رحمٰن د خدائے نوم په چا وا نهٔ خست
که د خدائے چارے په پلار شوے یا په مور

* ۹ * ۳۹ *

زهٔ تیر شوے یم تر سر په طلب د خپل دلبر
څو ژوندے یم په دنیا کښې پرے به نهٔ پوهم دغه در
د آشنا په طلب گرځم وچے شونډے لیمه تر
بو قدم مے دے په بحر بل قدم مے دے په بر
دواړه لاس مے دی نیولی هم په شام هم په سحر
مناجات مے دے و خدائے ته که ئے اووینم بشر
همیشه له خپله بخته گله مند یم سرور
چه په ما ئے بیرزو نهٔ کړو د خوبانو یو نظر!
هم ئے او نهٔ خودهٔ ما ته بے له عشقه بل هنر
عاشقی مے رب رسوا کړه په عالم کښې لکه نمر
نصیحت راباندے نهٔ کا لکه مړے هډوه اثر
واوره غوږ باسه ناصحه کوتاه وایم مختصر
په مولٰی مے د سوګند وی هم په روح د پیغمبر
جاروا ته مے بیرته نشته چه عالم شو راخبر
تر مئینه به ئے زار کړم که مے سیم دی که مے زر
که مے سیم دی که مے زر دی که مے دُر که مے گوهر
زهٔ رحمٰن تر هر څه تیر یم
تیر به نهٔ شم تر دلبر

* ۱۰ * ۵۰ *

چه په وخت د څنکدن اوکاږے پیر
ترو نن ولے هسے زنګ ئے بے تدبیر
هر سړے چه کان د غم په مخکښې وینی
له هغه غمه لا نن ګرځی دلګیر
چه صبا ارسانهٔوے پند د پیرانو
ولے نن د پیر طلب نهٔ کړے بے پیر

د یار یاد به دِ ځائے ځرنګک په زړهٔ نیسی
یاد د ځیر چه لرے نهٔ کړے له ضمیرَ
چه د توک په طلب کرځے خدائے دِ هیردے
فقیـری دا هسے چرے وی فقیرَ
دغه غم دِ خدائے بدل کره په ښادئے
زهیر مهٔ شے په آشـنا بسے زهیرَ
هر سړے د هغه منځ په رنړا کرځی
چه ئے خونه په خاطر وی پرے منیرَ
همیشه پراتهٔ په اور او په اوبو وی
عاشقـان د لعلو لبو لـه تاثیرَ
که هر څو ښائسته ډیر دی په جهان کښے
و هر چا ته خپل آشـنا دے بے نظیرَ
زهٔ رحمٰن د آزادئے په طلب کرځم
بارے نهٔ د تورو زلفو له زنځیرَ
* ۵۱ * ۱۱ *

---

و خوبانو وته ولے نظر نهٔ کړے
د چمن په ګلو ولے ګذر نهٔ کړِ
دا بهار چه درست جهان ئے معطر کړو
دماغ ولے په دا بوئ معطر نهٔ کړِ
رضا ولے په قضا سپارلے نهٔ شے
دغه زهر په ځان ولے شکر نهٔ کړِ
جګـزده چه په نارو د مرګ خبروے
ځان پښوا تر مرګه ولے خبر نهٔ کړِ
چه د نور خلقو په سر اچوے خاورے
تهٔ په خپله خاورے ولے په سر نهٔ کړِ

پس له مرګه چه بیا مرے له لوړے تندے
ولے نن ساعت توبه د محشر نهٔ کړے
دا وئیل دِ اثر کله کا په نورو
اے رحمانه په ځان ولے اثر نهٔ کړے

* ۱ * ۵۲ *

باړه اوتړه هله کښت د زراعت کړ
تقوی‌دار شه هله طمع د جنت کړ
عاقلان په وړاندے ځی په وروستو ګوری
په دنیا کښیے سرانجام د آخرت کړ
سم دلاسه کار هر ګوره ډیر مشکل وی
ځو لا نهٔ ئے غریب زیرمه د غربت کړ
چه نور خلق سلامت دړهاندے وائی
لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړ
چه عقبیٰ تهٔ د دنیا په اجر سوبے
خو هم دا عمارت هلته عمارت کړ
ځو به ګورے د قیامت ورځو او شپو ته
خو هم دا جهان په ځان باندے قیامت کړ
چه نیکی بدی په تله کښیے تلل شی
خود په خپله واخله تله عدالت کړ
که لښکر د حرص هوا دړباندے زور شی
سر دننـه په قلعـه د قناعت کړ

دا به نهٔ شي چه ستا ستړ او د حق مخ وی
که حق غواړے نهٔ هم مخ به حقیقت کړ
هغه زړهٔ چه عرش الله دے ګوره کوم دے
څو دِ توان شي د جمله زړونو خدمت کړ
وړاندني هم واړه ستا په څیر سړی وو
نهٔ هم پاسه د هغو په څیر خدمت کړ
د دنیا چارے همه واړه فاني دی
بارے پورته شه یو بل رنګه حکمت کړ
په طبیب د عاشقانو دارو نهٔ شي
دروسه بل خواته دارو د ځپل زحمت کړ
څو دِ حق سوندلے نهٔ دے مه جاروزه
په دا سرسته دا جهان واړه لت پت کړ
اے رحمانه اول تهٔ نصیحت واخله
دغه پسه بیا و بل ته نصیحت کړ
* ۲ * ۵۳ *

چه مے مینه خدائے په تا باندے پیدا کړ
ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړ
اوس ده ستا رضاء جفا کړے که وفا کړے
ما دا ستا جفا قبوله په وفا کړ
ګل په لعلو په ګوهر ګله څوک پیری
بے له ما چه تا خندا کړه ما ژړا کړ
بے له ما چه دا ستا غم په هوس پیرم
کوم وګړے په هوس د غم سودا کړ
دوه یاران په دارنګ چا نهٔ دی لیدلی
چه یو ورته کتحل کا بل دعا کړ

ما و درست جهان ته شا و تاته مخ کړو
تا وه درست جهان ته مخ او ما ته شا کړ
ډیر هندکی په جهان ګرځی د چا یاد دی
عشق عالی پایه د هیر او د رانجا کړ
هم په داڅ تر همه ؤ نام بلند شو
چه قبوله عندلیب د ګل جفا کړ
نا آشنا د بیلتانه له غمه څه زده
خدائ دغه خواری په بخره د آشنا کړ
عاشقان د یار تر سپیو هم زاریږی
ګنړه ما د رقیبانو څه پروا کړ
زه رحمٰن چه ستا د حسن ثناخوان یم
ستا له رویه درست جهان زما ثنا کړ
* ۳ * ۵۴ *

ستا دی خواب آلوده سترګو خواب راځخه یوور
شونډو دِ لذت د مئ و ناب راځخه یوور
نه مې اوښکې پاتې شوې نه صبر په صورت کښې
ډیرې بې صبرئ دِ د مخ آب راځخه بوور
زړه مې په نغمو سره سورې کړو مطربانو
عقل ساقیانو په شراب راځخه یوور
یو ساقی بل یار دریم مطرب سره یو ځائ شو
زړه ئ له ګوګله په شتاب راځخه یوور
څه شو که ئ یوړو خسته دل مې ترې قربان شه
نور چا اوړې نه دې خپل احباب راڅخه یوور
خط دِ تور حرفونه مخ دِ پاڼې د کتاب دی
شغل د کتاب دِ بل کتاب راځخه یوور

هر اسباب چه ما څخه د زهد د پرهیز وو
واړه تا د حسن په اسباب راڅخه یوړ
کړے ما وحشن په زړهٔ کښے نقش د محراب وو
ستا آبرویو نقش د محراب راڅخه یوړ

* ۵۵ * م *

ولے ولے و عاشق ته نظر نهٔ کړې
دا گدا په دیدن ولے توانگر نهٔ کړې
ستا دے ډیرے حیا ډیر کورونه وران کړل
چه هیڅوا وته کاتهٔ برابر نهٔ کړې
ستا په ډیر حسن مے دا عقیده نهٔ شی
چه دا روغ وکړے واړه اوتر نهٔ کړې
تهٔ پلو له مخه واخله زهٔ ضامن یم
که اورنگ د زمانے قلندر نهٔ کړې
زما هر زمان عمر دم په تا گذر وی
تهٔ یو دم زما په لوری گذر نهٔ کړې
لکه تهٔ چه دلاور زما په مرگ ئے
په دا رنگ چرے رقیب دلاور نهٔ کړې
زهٔ د ستا په جفا خوښ یم تل تر تله
خو غماز مے له دے رازه خبر نهٔ کړې
گذشته جفا دِ واړه آواره وی
که دا جور و جفا بارِ دگر نهٔ کړې
هغه څوک دی چه به ستا له درّ دروسی
که ئے تهٔ له خپله درّ بدر نهٔ کړې
سنگدلی ده هغو خلقو لره ختمه
چه ئے تهٔ په مجلس ور شے اثر نهٔ کړې

رحمٰن ستا مینے رسوا کړو بارے حیف دے
چه ته هیڅ پہ دا خبره باور نهٔ کړې

*۵*۶۰*

خراب زړهٔ مے د دلبرو هوا یوور
د هوا له ورېو چا زده چه چا یوور
ګوټے ګوټے ناستہ مے زړهٔ اوکاږی
زهٔ و کوم یوهٔ ته وایم چه تا یوور
چه مے زړهٔ لره د تورو زلفو ځائے غوښت
هغه زړهٔ را څخه تورے بلا یوور
د سیلاب په مخکښے کله د چا خوب شی
شیرین خوب را څخه ډیرے ژړا یوور
هغه عقل چه ئے لاڅے د خود رائے کړے
په یوه پیاله ئے واړه له ما یوور
هغه رخت چه مے د صبر د سکون وو
هیڅ را نهٔ کړهٔ مهوشانو ویریا یوور
که ئے یوړو خسته زړهٔ مے ترے قربان شه
نا آشناؤ ورے نهٔ دے آشنا یوور
هیڅ ناحق پرے شوی نهٔ دی که حق وایم
معشوقے د رحمٰن زړهٔ په رضا یوور

*۶*۵۷*

تر ابدے ورځے پورے به جفا کړې
که به مهر و وفا هم چرے پیدا کړې
معشوقے کله جفا کله وفا کړه
میباید چه کله هغه کله دا کړې

ما ستا خویٔ دے و هر چا وته ستائیلے
چرے نهٔ چه دورغژن سے تر هر چا کړ ے

چه دا ستا دغه خصلت وی زما اوښکے
دا پټ راز به سرے په درست جهان رسوا کړ ے

ستا څه لاس را باندے نهٔ رسی دلبره
چه په لاس د رقیبانو سے سزا کړ ے

مرم په دا چه د اغیار په رضا دروسے
نۀ په دا چه تهٔ په ځان خپله رضا کړ ے

په درست عمر به هیچا لیدلے نهٔ وی
هغه چارے چه تهٔ هر ساعت په ما کړ ے

ما رنځور په کټ کښے پریږدے چه کړیږم
تهٔ لا ګرځے د رقیب سره خندا کړ ے

لاس تر غاړے د رقیب سره خندا کړ ے .
چه ما اوویني له قصده راته شا کړ ے

هر بیګاه واڼے صبا له به خوندۀ در کړم
دا بیګاه به په رحمٰن کله صبا کړ ے

* ۵۸ * ے *

کله په نمر سوزے کله ویږدے په سارٔ
کله مرے له لوږے کله مرے په ډیر خوارٔ

واړه په غوغا دی چه راغلی په دنیا دی
نه ئے مغه اوړی په قرار دی نهٔ مارٔ

کله لاس په سر و بل ته کیږدے تواضع کړ ے
کله و بله کیږدے لاس په ټوره په چارٔ

خاورے د آدم چه کړے خمیر فرښتګانو
درست ئے په غمونو په دردونو ولاړ

څه شو که څوک نن ساعت وهل کا یا ترړل کا
پیش به په هغهٔ شی چه واههٔ شی هم تاړ
ښائی که څوک پس له مرګه خاندی په لحد کښې
هر چا چه ژوندون کښې خپل ښې سر وژاړ
وینی واره تلونی هیڅوک نهٔ دی پاتے شوی
یون دے په دا لارے هم د ځوان هم د زاړ
زلفے د دلدار دی چه هر څوک ئے طلبګار دی
لوئے دی که هلک دی که غټان دی که واړ
سخ د هغه چا دے چه په در کښې ئے قبول شی
زار د هغه چا چه ئے له دره اوشاړ
ما عبدالرحمٰن غونډے سلام کړهٔ ورته سلو
خدائے خبر چه کوم یو هغے ترکے ولاړ
*۸*۵۹*

چه مدام د بل و عیب وته نظر کړ
خدائے له خپله عیبه ولے ناخبر کړ
که یوه تجودانه عیب وینے په بل کښې
هغه یو تجودانه عیب به ئے لوئے غر کړ
که دِ خپله ګناه لویه لکه غر وی
په حیله حیله به غر د مچ وزر کړ
که څوک تله د انصاف درته په لاس کا
خپل تتو او د بل آس به برابر کړ
تو لعنت دِ په دا هسے منصفئے شه
چه له حقه و باطل وته ګذر کړ
خدائے وتا ته ملائکو مقام درکړو
تهٔ دا خپل صورت په خپله ګاؤ خر کړ

په نعمت ئے شکرانه کولے نهٔ شے
چه زحمت درباندے درشی شور و شر کړ
که دِ بو ویښتهٔ د ځان د پاسه کوږ شی
ځان هغه ساعت له خدایه مرور کړ
چه ښندلے دِ په خدائے وی یو ککوړے
نمایان ئے په جهان کښے لکه نمر کړ
لکه څوک تر مکے لاړ شی بیرته راشی
د دنیا د پاره هسے لوئے سفر کړ
که یوه رتئے زر په لاس کښے کیوزی
خروار د عبادت په رتئے ورکړ
د ځوانئے عمر دِ تیر کړو په شذات کښے
په پیرئے کښے په څه زیرمه د محشر کړ
په دنیا پسے دِ نمری دی رنګ کړی
ځان و خاتو ته درویش و قلندر کړ
لکه وار چه د زړے لولئے تیر شی
اوس توبے له ضرورته په سپین سر کړ
په پیرئے کښے د ځوانئے چارے نهٔ شی
ته په ورځ د عاشورے په څه اختر کړ
لکه بیغ د زړے اوئے چینجی اوخوری
په دا تیر عمر به څه شاخ و ثمر کړ
دغه باغ به دِ خلاص نهٔ شی له خزانه
که چاپیر ورځنے سد د سکندر کړ
و بدخواه ته څوک نیک نصیحت نهٔ کا
رحمان ستا په غم شریک دے که باور کړ
* ۹ * ۶۰ *

نۀ یم خوښ د سرو ګلونو په سایا زۀ
خوښ یم ستا د مخ په اور باندے جلیا زۀ
په اور سوے ښار وران وی څه حکمت دے
سوے ستا د مخ په اور یمه بسیا زۀ
خپلوم به دِ په هر رنګ چه خپلیږے
که دِ موسم په دروغ که په رښتیا زۀ
نن راغلے په جهان ئے که دیدن کړے
نۀ به تۀ په دنیا راشے نۀ به بیا زۀ
دا اوږدے وعدے چه تۀ کوے صنمه
کاشکے بیا موسم فرصت په دا دنیا زۀ
چه له ډیرے حیا نۀ ګورے و چا ته
غوږ ګرم غوږ کړم دے ستا ډیرے حیا زۀ
چه له غمه له اندوهٔ دِ مړ نۀ یم
سنګ آهن یم آدم نۀ یمه ګویا زۀ
که جوره څوک تلے و قبر ته دریغه
ژارم دا چه یا به تۀ نۀ ئے او یا زۀ
همیشه د خپلو اوښکو له سیلابه
سر ګردان یم تر فلک او تر آسیا زۀ
که څوک قیاس زما د ډیرو اوښکو اوکا
هسے ګرځم لکه خس پاس په دریا زۀ
زۀ رحمٰن د یار ثنا کولے نۀ شم
کاشکے نۀ وے په جهان کښے څه ګویا زۀ

* ۱ * ۶۱ *

وبښتهٔ سپین سترګې تاریکې غاښ کنـډاس
نـهٔ اوکاږې د دنیـا له چارو لاس

په هر لوری چه ئې موې پسې دروې
نهٔ په چپ لوری صرفه کړې نهٔ په راس

یو وبښتهٔ د عقیـدې دِ په تن نشته
سر تر پایه هسې ډوب ئې په وسواس

خدائې رازق ګڼړې او رزق ګڼړې له کسبه
په دا شناخت و ځان ته وائې حق شناس

هسې رنګ په مذبذب صفت موصوف شوې
نهٔ پوهیږمه چه ناس ئې که خنـاس

په دوئی کښېږې به ور نهٔ شې تر توحیده
که پیشوا کړې مهتر خضر مهتر الیاس

واړه زهرِ قاتل نغرې که پوهیـږې
چه تهٔ بې له خدایه نغرې هر انفاس

امر دا دې چه له نهي لاس کوتاه کړې
او که نهٔ وې خپل سر اوګڼړه مواس

خیر دا دې چـه له شره اوجـاروزې
په دا چاره کښې هیڅ نشته کوز و پاس

که زما وئیل دروغ او کوز و پاس وی
تهٔ په خپله په خپل زړهٔ کښې اوکړه قیاس

که سړې ئې غرض واړه سړی هوش کا
نهٔ چه بټ وی د سرو زرو په لباس

څه په دا به عراق او ترکی نهٔ شې
که په خرهٔ باندې څوک سور شی که په آس

د تشنه خــولهٔ اوبو سره مطلب وی
نهٔ تش اینبے بے اوبو د زرو طاس
هر زاهد چه د ریا په زهد نازیږی
د ځربښت ګمان ئے کیږی په آماس
اے رحمانه که څه کار دے خو د دین دے
نور کارونه بے وفا دی بے اساس

*۱*۶۲*

تیر شو درست عمر زما په دا هوس
که مے اوپوهنتی چه څوک ئے یا څه کس
یو پرسش د هغه یار را لره بس دے
که څه کس وی خو یو وار وی ورله بس
هزار حیف دے چه په هر نفس ترے تښتم
هغه لور ته چه مے تلهٔ دی هر نفس
چه ئے زهٔ په هر نفس له خدایه غوارم
هغه کله کله وینم په ډیر بس
که یو خس وی په محتاجو لکه غر شی
خدائے دِ نهٔ کا څوک محتاج د یوهٔ خس
هر مارغهٔ په خپله جاله کښیے همائے دے
که قارغهٔ که مښکیرک دے که ققنس
که شهبـاز لره سینه ده د تنزری
عنکبوت لـره سیـنه ده د مګس
څنګه چه خـاورو لـره ورشی برابر شی
که چا ګوندے وی اغوستے چا اطلس

هر هغه مے خنده وی چه ژړه وی مے
بل څوک نشته د رحمٰن فریاد رس
*۲*۶۳*

که په عقل پسے لاړم په کار نۀ شی
که له بخته مے یاری غوښته یار نۀ شی
غرونه غرونه خوب په څاڅکی اوبو دروسی
یار په سیند زما د اوښکو بیدار نۀ سی
معلومیږی چه کم بخت د درست جهان یم
چه د درست جهان دلدار مے دلدار نۀ شی
ما غوندی او رقیب ستاۓ طالع ګوره
چه سرے ورته د سپی په مقدار نۀ شی
که ئے سل ځله اقرار را سره اوکړو
دا زما نا قراره زړۀ په قرار نۀ شی
ډیر غمونه دی چه ئے اوخورمه په خپله
په دنیا کښے مے بل هیڅوک غمخوار نۀ شی
که مے سل نصیحتونه ورته او دړۀ
هغه خدائے بے لارے کړے په لار نۀ شی
سهل کار دے که رحمٰن په زړۀ آزار شم
چه خاطر د هغے مستے آزار نۀ شی
*۱*۶۴*

چه له سترګو مے خوناب د زړۀ عیان شی
له نظره مے هر سنګ دُر و مرجان شی
خراب زړۀ چه مے ژړل د یار له غمه
بیا په اجر د هغے ژړا خندان شی

کمینئے له جمله آفتـو خلاص کرم
لکه ښاورے د دښمنو په چشمان ش
د غصے زهر ئے شهد شول په صبر
د خلیل په څیر آتش پرے گلستان ش
عشق ېو داد دے په عاشق له خپله خدایه
هسے نۀ چه و هر چا وته عیان ش
چه د یار زلفے رخسار مے په زړۀ نقش شو
خپل خلوت مے خراسان و هندوستان ش
د رنځور علاج تارخۀ تارخۀ دارو وی
دغه درد دے چه هم درد و هم درمان ش
چه دا ستا د خولو بوئ وربانده راغے
د عطار په مغ د اوښکو رود روان ش
علامت د استغنا په ئے څرگند وی
هغه څوک چه تیر تر ځان و تر جهان ش
د گریبان په چاک کول ئے څه لارغه وی
چه ځیگر ئے ړومبے چاک تر گریبان ش
نادانان په دے دنیـا غمونه کاندی
مرد هغه دے چه په زیرمه تر خپل ځان ش
نشانه د نادانئے په نوره څه وی
چه سرے په خپل گذار باندے پښیمان ش
آدمیت څه په دولت نۀ دے رحمانه
بت که جوړ شی د سرو زرو نۀ انسان ش

* ۲ * ۶۵ *

په دنیا کښے له دنیا گوشه کنار ش
سمندر غوندے په اور کښے گلعذار ش

پس له مرګه که ژوند غواړے سر ګیاه کړه
په پریکړی سر بیا نوے مرغزار شی

دا ترخے اوبۀ په څه کوے د بحـر
خود په خپله د ګوهر په څیر آبدار شی

بے له خدایه د هیچا منت‌بار مۀ شه
په اوچ کانړی باندے اونه د کهسار شی

که د اونے په څیر ګل او میوه غواړے
ځان په نمر کړه سایه‌بان د هر خاکسار شی

دست په دست که د خپل کار په درستول ئے
لا په خوا تر ځان وړومبے د بل په کار شی

که دِ یره شی لـه خپلے درماندګۍ
د درماندو دستګیری کړه خبردار شی

که هـوا دِ د جنت په خـاطر ګرځی
خاک نشین په آستانه د هغه یار شی

که په توره تاریکۍ کښے رنړا غواړے
نندارچی د یار د زلفو د رخسـار شی

که پکار دے د سرو شونډو شیرینی وی
د خپل ځان په وینو سور لکه انار شی

که دِ زړۀ وی چه دِ باغ د زړۀ سبزه شی
په ژړا لکه باران د نوبهار شی

د رحمٰن په عاشقۍ کښے سترګے اوشوے
چه څوک وائی عاشق ړوند دے هغه خوار شی

* ٣ * ٦٦ *

پاسه یو ځله سیراب د عشق په جام شی
په ساغر د ماه و مهر مئے آشام شی

له اولــه بنــدګی بيــا آزادي وي
که مقصود د آزادۍ لرے غلام شي
د صياد له وحشتونو خپل سر خلاص کړه
لکه مرغ خانګی په خپله دام شي
ژوندے ځان په زمکه خښ کړه لکه تخم
که لوئی غواړے د خاورو په مقام شي
دزست جهان د کمينئے په خوئ وخوره
لکه زمکه هسے لاندے تر اقدام شي
په نيستئے کښے د هستئے مرتبه ګوره
تتدارچی په ويرانه کښے د خپل بام شي
و دښمن وته خپل حال په خپله وايه
ځان پخوا تر مرګنه اووژنه مدام شي
په مستانو کښے د عقل ځښتن غل دے
که په نورو خلقو خاص ئے دلته عام شي
اے رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه
دغه پسه په صفت د ګل اندام شي

* ۳ * ۹۷ *

د دنيا د سود د پاره غمګين مه شي
غم د دين او د ايمان خوره بے دين مه شي
هر ګره ګره کشائے لری کم بخته
نا آميد له خدايه غوټه جبين مه شي
ډير خفت دے دارنده چه دانه چين شي
څو دے آب و دانه شته دانه چين مه شي
هر مارغه چه د بل غوښے خوری مردار وي
ځان حلال کړه لکه زانرے، شاهين مه شي

ذد رے په خیر آفتاب په طلب خپل کړه
لکه تیږه هسے پروت په زمین مهٔ شی

کار په تش لستونړی نهٔ کیږی بے لاسه
لاس په پیره کړه بے لاسه آستین مهٔ شی

عاشقی او خود بینی دی سره لرے
که مطلب دِ عاشقی وی خود بین مهٔ شی

په خپل کور کښیے دِ سفر دے که پوهیږے
مسافر د هندوستان او د چین مهٔ شی

خپل تابوت درته ولاړ زین کړے اس دے
ته په زیرمه د بل اس او د زین مهٔ شی

چه تقوی دیانت نهٔ لرے رحمانه
د دے هسے همنشینو نشین مهٔ شی

*۵*۶۸*

په آمید د آئنده و زرهور مهٔ شی
نصیه نقد حُبله بیل کړه اوتر مهٔ شی

په آمید آمید ئے خلق نا آمید کړل
د فلک د رهزنئے بے خبر مهٔ شی

د دنیا بادشاهانو [illegible] له فقیره
تهٔ بادشاه د هسے [illegible] مهٔ شی

د همائے په څیر طعمه کړه اوچ هډوکے
لکه میچ طالب د شهد و شکر مهٔ شی

[illegible] صدف غوندے و خاورو له کړه څیرمه
[illegible] زکِ هسِر د بحر په سر مهٔ شی

ډیر عزیز دی موم دلان تر [illegible]
تهٔ یو څاځکے شه د اوښکو گوهر مهٔ شی

حیوانات عم په تسبیح د خدائے مشغول وی
ته انسان ئے له حیوانه بتر مه شی

نفس شیطان سرے و کفر ته اوباسی
رحم فهم په ځان اوکړه کافر مه شی

تپ رانده وی عاشقان یار له عیبه
ته تپ روند هغه یار په هنر مه شی

دغه ځائے بیدلانو دے رحمانه
د دلبرو په کوڅه دلاور مه شی

* ٦ * ٦٩

زړه مے باڼیلو ستا په مینه محبت کښی
عاشقئے د زهر راکړه په شربت کښی

لار زما و یار ته مه تړه ناصحه
ما موندلے دے دا یار په ډیر محنت کښی

که صورت د هغے مستے در ځرکند شی
عقل هوش به دے هیڅ نه وی په صورت کښی

که د عشق ترکمر پریوزی سر به باڼیلی
ته چه ما ته غابښ چیچے په نصیحت کښی

زه توبه په هغه تیر عمر اوکاږم
چه صرف شوے دے بے یاره په غفلت کښی

اشنا د میني پت به مے مات نه شی
که مے سر له تنه دروسی په دا پت کښی

له ادبه ئے و مخ ته کتے نه شم
خدائے را پیښه جدائی کړه په وصلت کښی

په قیامت نه ځوګاں له نیته پوښتیده شی
زه د کوڅے خاورے یم په نیت کښی

رگاه په خاک نشینو سختي نه وي
د غمونو دخل نشته په جنت کښې

د دنیا له دولتونو بې پروا یم
زه رحمٰن د عاشقۍ په دا دولت کښې

* ۷ * ۷۰

هسې بې له یاره زه یم په جهان کښې
چه مې نه شي ځائې په زمکه په آسمان کښې

مړه ګلونه چمن راته سور اور شي
چه قدم بې یاره کیږدم په بوستان کښې

چه ئې مړ نه یم له ډیرې بې نیازئې
حیرانیږم د ناتوان صورت په ترپان کښې

که هر څو فکر له ځانه سره اوکړم
هیڅ صبر طاقت نه وینم په ځان کښې

هیڅ ساتنه د سرکش خاطر را نه شي
څوک ساتلې شي بخرې ګریوان کښې

هغه به بل ناډان په جهان نه وي
چه څوک مهر وفا غواړي په ناډان کښې

که ئې سل ځله زا و قربان بولم
غوږ را نه بدا په زار و په قربان کښې

هسې رنګ زما په ډیره ژړا خاندي
لکه ګل د سپرلي خاندي په باران کښې

جوهري شي دُر و لعل کاندي برخیره
چه مې کښېني دوه سترګو په دوران کښې

چه مې هیچرې په خوا په خاطر نه وو
زړه ئې راته څرګند کړه په زمان کښې

چه په وصل کښې ئے اوښکے نهٔ اوچیږي
ترو به حال د رحمٰن څه وي په هجران کښې

* ۱ے * ۸ *

زړهٔ مے ډوب ډوب کیږي ستا د غم په غلبو کښې
هسے لکه څوک چه مستغرق شي په اوبو کښې
ستا د عشق له موجه په هیڅ لوري وتے نهٔ شم
دواړه لاس مے پریوتهٔ د عشق په لانبو کښې
سل توبے مے ماتے کړے وا نهٔ اوښتم له عشقه
ما ویسا مے نوره پاتے نهٔ شوه په توبو کښې
تهٔ چه له ما دروے دا د اوښکو باران ګوره
رخ د سفر هیڅ نهٔ دے په دا ګنړو شیبو کښې
نهٔ یوه سپوږمئ نهٔ په آسمان کښې هزار ستوري
بے تا به څوک څه کاندي د خلقو په جنبو کښې
عشق و عقل دواړه سره ضد دے که پوهیږے
کله کړي آرام د اور بخړي په لنبو کښې
څوک چه د عشق په آتش سیزي رحمٰن
خدائے دِ هیڅوک نهٔ کا ابراهیم غوندِ لنبو کښې

* ۲ے * ۹ *

مدام ناست یم اوچ ګوګل سترګے په نم کښې
عشق را اوښود بحرِ و بر په خپل حرم کښې
ما چه زخم ستا [illegible] په خوا [illegible] کړو
نور مے دا لذت بیا نهٔ موند په مرهم کښې
خود مجنون چه سر په ښبو د لیلی کیښود
سرفراز شو په عرب و په عجم کښې

زور زر مدام غالب وی په کمزوری
زهٔ له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کښې
اکه زهٔ چه مستغرق یم ستا په غم کښې
بل به نهٔ وی په جمله بنی آدم کښې
لکه مرے د ژوندو تر میانه پروت وی
هسے بیل یم له عالمه په عالم کښې
هیڅ صحت مے د دم کړو په دم نهٔ شی
هم په دا چه زما دم وی ستا په دم کښې
نهٔ مے بے تا تږ و پوے نهٔ جستجو شته
مراد مے تهٔ ئے په هر دم په هر قدم کښې
که نصیب مے شی کوغالی ستا د سپیو
وو به نهٔ کرم نور نظر په جام د جم کښې
زړهٔ مے هسے ستا په زلفو پسے ورک شو
لکه غوټه د چا پریوزی په تورتم کښې
مرهٔ په وینو د سرو کلو په څیر رانکی
هزار زرونه ستا د زلفو په هر خم کښې
زهٔ رحمان کناره خوښ یم له عالمه
بارے ستا سترکو رسوا کړم په عالم کښې
*۱۰*۷۳*

د

د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښې
یبا د کلو تماشه کړه په بوستان کښې
څو دِ تیره تلخئی تر ستونی نهٔ شی
شیرینی به خوند درنهٔ کا په دهان کښې
ما په هجر کښے لذت د وصال بیا موند
ملاقی شوم له یوسفه په زندان کښې
لکه متن له معنیٰ، معنیٰ له متنه
یار هم هسے دے زما په دل و جان کښې
عاشقی آسانه مهٔ کنړه خبر شه
سر بازی ده د هر نفس په دا میدان کښې
د نادان له ناتوانئے نه اوویریږه
که هزار حله توانائے په خیل ځان کښې

حم هغه به پس له سرکه ازاریږی  عر چه بل آزاره وی په دا جهان کښی

په رحمٰن باندے بے یاره عسے حال دیے
لکه حال د زندانیانو په زندان کښی

* ۱۱ * ۲۳ *

مغرور مۀ اوسه د عشق په کار و بار کښی
هر خسترے یوه تیغ دے په دا لار کښی
دا سور گل به دِ دستار په وینو سور کا
چه دِ اینیے زمانے دے په دستار کښی
مخ د ترکو چه تر آب حیات صاف دے
زۀ دے آب حیات سوے یم په نار کښی
چه د اوسپنو دانه پرے اوښ کیږی
ترو زما د هستیے څه دی په دیدار کښی
چه په هر وار ئے زۀ سترګو ته نظر کړم
لاس مے وللی دی له ځانه په هر وار کښی
یاره تۀ چه له ما صبر و قرار غواړے
عاشق کله وی په صبر و په قرار کښی
که مے سر و مال دا ستا په مینه ذرومی
زۀ تر سر و ماله تیر یم په دا کار کښی
ستا له دره له ذیاره به وا نۀ وړم
څو ونۀ مرم ستا په در او په دیار کښی
کم بختان د یار په وصل کښیے مهجور وی
د وچ ذکی بهره نۀ وی په بهار کښی
مفلسانو لره عین کوهستان دے
که همه عمر ئے کوز وی په بازار کښی

و عیب جوئ ته واړه عیب ښئ څرګندېږی
ښائسته که ځان یوسف کا په سنګار کښښ
چه هنر د عاشقئ ښئ خدائ نصیب کړی
بې هنره نور څه نه وینی په یار کښښ

دا داغونه د خپل زړهٔ ورا ره بس دی
څه حاجت دے د رحمٰن په لاله زار کښښ

* ۷۵ ۱۲

ستا د مینې ګوهر نشته په هر آب کښښ
مګر بیا موند شی د اوښکو په دژاب کښښ
که ته وینې زما پټې څښئ دلبره
رنګ د لبو د ګواهئ نی په دا باب کښښ
په هر ځائ چه ستا د لبو نوم آغاز شی
د لاله ؤ باران اورې په دا باب کښښ
له خسته زړونو به څه دلستانی کا
د خراج ګنجائش نشته په خراب کښښ
زهٔ حیران دا ستا د روزو په تور خال یم
کافر خشکله سجده کا په محراب کښښ
ګل له ډېرے نازکئ په شبنم خور شو
نازکان زړهٔ بده وی په صاف ځواب کښښ
د بهار په ګلو آوری بارانونه
څڅوبکی طاقت نه وی په حباب کښښ

د رحمٰن غلطی اوبخښه اے خدایه
د اوترو چارے نه وی په حساب کښښ
* ۷۶ * ۱۳ *

ښائسته مخ دِ تور کودے شی په پیرۓ کښ
سم قامت دِ کوږ لړګے شی په پیرۓ کښ
لکه شمع د سحر آفتاب د زمی
هم بے تاب و هم زبرے شی په پیرۓ کښ
یو طرف ته ئے سر ریږدی بل خوا دروَمی
خپل صورت تمام پرَدے شی په پیرۓ کښ
د مردوٗ په حساب وی غزا اوشوه
که څرګند لیدے ژوندے شی په پیرۓ کښ
سړے لا څهٔ وی پس له مرګه پیا ژوندے شی
نشته دا چه څوک زلمے شی په پیرۓ کښ
که څه اوخوری لکه زهر نهٔ هضمیږی
نهٔ څه څښیے او نهٔ خوړے شی په پیرۓ کښ
دا څوانی ده چه څه آورے یا څه وینے
نهٔ لیدے نهٔ آوریدے شی په پیرۓ کښ

اے رحمانه! پیری هسے عاجزی ده
که رستم وی زړهٔ پرے سوے شی په پیرۓ کښ

* ۱۳ * ۷۷ *

---

هر ساعت که څه ګذران دے بے مخلص
هزار بار ارمان ارمان دے بے مخلص
که څوک وائی چه له خانه شیرین نشته
ولے ما ته ځان تاوان دے بے مخلص
لکه شمع په ورځ مرمه د شپے سوزم
تمام عمر مے نقصان دے بے مخلص

په بلبل کله بهار کله خزان وی
په ما ګل واړه خزان دے بے مخلص
که شبنم همیشه ـ نور را باندے آوری
په ما کانړے د اسمان دے بے مخلص
ډیر غشونه د هجران را باندے تیر دی
اوس یو دم راباندے ګران دے بے مخلص
د اشنا د مینے اور و ما ته ګل دے
ګل د اور په دود سوزان دے بے مخلص
په وصال کښے مے نهٔ مرګ لیدهٔ نهٔ تبه
اوس مے مرګ په هر زمان دے بے مخلص
زهٔ حیران د هغو خلقو په روزګار یم
چه ژوندون ورته آسان دے بے مخلص
د رحمان د زړهٔ دمه په هیڅا نهٔ شی
مسافر غوندے حیران دے بے مخلص

*۱*۸*

---

۱ په ولے کړو فریاد او فغان دریغ
که اشنا سره وے جاودان دریغ
په فراقه مخ د زړهٔ په وینو وینځم
کشکے نهٔ وے مرګ بیلتون په جهان دریغ
فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړی
چه آخر به باندے راشی خزان دریغ
زهٔ حیران ورته ولاړ په سترګو وینم
چه دائم راځنے درومی یاران دریغ

یو ذره مے په طاعت کښیے تیره نهٔ کړه
ګران بها عمر مے لاړ رائګان دریغ
سرکښئے کښیے تیر تر حده بیچاره یم
که قوت د طاعت راکړو رحمٰن دریغ

*۱*۹۷*

که یو ځل مے هغه یار ولیدے دریغ
سرفراز مے سرګردان ولیدے دریغ
چه د تمام جهان عقل غلبیل کړمه
ریز مریزه مے پیکان ولیدے دریغ
د وجود ګلزار ئے درست سره اغزی شهٔ
خارستان مے باغستان ولیدے دریغ
روغ صورت لکه بادشاه صحت ئے تخت دیے
ناست په تخت مے شاه‌جهان ولیدے دریغ
د تن ښهر ئے خرابه خرابی شوه
بیا مے دا خراب ودان ولیدے دریغ
لکه زهٔ چه له مخلوقه ګریزان یم
سګ مے هسے ګریزان ولیدے دریغ
دا سبق راته تعلیم شکستګئے کړهٔ
چه روغ کار مے شکستګان ولیدے دریغ
سخت ساعت زمکه آسمان راته یکسان کړل
فرق د زمکے د آسمان ولیدے دریغ
و دے خپلے حیرانئے وته حیران یم
چرے حیران صورت شادان ولیدے دریغ
د قرآن او د حدیث په کتو خوښ شوے
بیا په لاس حدیث قرآن ولیدے دریغ

چه زما زحمت بیغور کړے وما ته
ما هغه د ځان په شان ولیدے دریغ
خپل یاران مے له زحمته په ژړا دی
ما دغه یاران خندان ولیدے دریغ
د آشنا زلفے مے ولیدے په لاس کښے
بند په لار د هندوستان ولیدے دریغ
صبح و شام مے ګدائی د یار د در کړے
په دا کار مے ځان مهمان ولیدے دریغ
درخانئے او آدم خان په ارمان لاړل
لرے ما له زړه ارمان ولیدے دریغ
مخامخ مے ګفتګوئی له یار سره کړه
د یار ما دغه احسان ولیدے دریغ
چه خطا ئے واړه عفوه کړی رحمانه!
یار مے هسے مهربان ولیدے دریغ

*۲*۸۰*

---

خدایه! څه شو هغه ښکلے ښکلے خلق
هیڅ خندا مے له دے خلقو سره نه شی
خبر نه یم چه و کومه خواته لاړشه
لکه څک چه د اوبو په مخکښے درومی
دریغه هو ځله خو بیا په دنیا راغلے
هزار حیف دے چه په خاورو کښے لاړه شی

په ظاهر په باطن سپین سپیځلے خلق
زړه وی مے هغه تللے تللے خلق
لیدے نه شی هغه ما لیدلے خلق
هسے درومی په دنیا راغلے خلق
له جهانه په ارمان وتلے خلق
په چوو او په چندنړ لړلے خلق

رحمان هسے کوښه خوند له خلقو بیامومند
چه دا خوند نه شی هرګز موندلے خلق

*۱*۸۱*

چه امید په عمارت د دے جهان کړ
لکه کرښه په اوبو هسے نشان کړ
د اوبو په مخ د کرښے بقا نشته
په نابود باندے ناحق د بود گمان کړ
نادانانو هسے دین په دنیا بائیلود
لکه ورکے دُر بدل په پاره نان کړ
د دنیا و دین نصبت وبله نهٔ شی
اور اوبهٔ سره استوږنه په څه شان کړ
عشق د نفس له خاصیته منزه دے
کار د مترکو به څوک څنګه په دهان کړ
لکه کار د گوش و چشم سره بیل دے
هسے دین و دنیا حکم په څان څان کړ
په پیرنے کښے د څوانئے خیال دے هسے
لکه څوک چه د بهار سیل په خزان کړ
بے درگاه نے بل څائے د رحمٰن نشته
په سفر استوږنه څو مسافران کړ

* ۱ * ۸۲ *

که سرے د خپلے پوهے تقصیر نهٔ کړ
د خدائے کړهٔ به څوک په پوهٔ تغیر نهٔ کړ
خواه مخواه به د تقدیر کښلی ورپیښ شی
که څوک هیچرے نظر په تقدیر نهٔ کړ
د هغو چه بخت بیدار وی غم نے نشته
که هیچرے بیداری و شبګیر نهٔ کړ
دا له خپلے کم پوهئے مونږه څه وایو
چه فلانے سرے تالاش و تدبیر نهٔ کړ

دلگیری او خوشحالی که په خپل لاس وے
په خپل لاس به خیسر هیځوَ دلگیر نهٔ کےَ

معرفت د خدائے څرګند دے په هر څه کښې
سترګے وخوره چه څوک همره نظیر نهٔ کې

دا نفس په مثال برق صورت فانوس دے
برق به هیڅوک په فانوس کښې اسیر نهٔ کےَ

د دنیا سړی همه واره درماند دی
کوم بادشاه دے چه منت د وزیر نهٔ کےَ

کوم وادهٔ کومه کوژدن ده په جهان کښې
چه فلک ئے و آخر وته وبر نهٔ کےَ

په خولهٔ هر یو سړے اسم د پیر آخلی
بارے څه پکار چه نغوته د پیر نهٔ کےَ

دغه نښې د قیامت نهٔ دی نور څه دی
چه د پلار ونیل په څوئے کښې تاثیر نهٔ کےَ

هسے چارے له ناصحه واقع کیږی
چه له شرمه ئے هیڅ غل او کاثیر نهٔ کےَ

په مرده پسے تکبیر وکا روان شی
هیڅ ګمان په ځان د هسے تکبیر نهٔ کےَ

په دنیا پسے درست عمر زهیریږی
ځان یو دم د خدائے د پاره زهیر نهٔ کےَ

د عیال د پاره تیر تر سر و مال شی
دلجوئی په یوه توک د فقیر نهٔ کےَ

رحمٰن کرم دے چه نارے د هجران آوری
و آشنا وته کاتهٔ په خیر څیر نهٔ کےَ

*۲*۸۳*

چه امید په عمارت د دے دنیا ک
د کاغذ په کشتئے سیل به د دریا ک

د اسمان توسن هیچا نهٔ دے تیزلے
څوک به څرنګه سورلی د باد په شا ک

نهٔ لیرهٔ په آدمیت آموخته کیږی
نهٔ آمید د مروت شی له افلاک

له فلکــه د وفا امید باطل دے
کله دیو لــه آدم زاد سره وفا ک

زمانه په اسلام کفر سمه ګرځی
فرق د تورو د سپین کله نابینا ک

ما د دهر علامت په سترګو ولید
په هر دم هزار پیدا هزار فنــا ک

هیڅ امید مے د ایام په ګردش نهٔ شی
چه فرصت به په خپل دوُر وسا را ک

په خپل عمر به هیچا لیدلے نهٔ وی
هغه چارے چه دے هرساعت په ما ک

که د ګلو غنچه کیږدم په دستار کښے
شوم طالع مے هلته خار څنے پیدا ک

که و زرو وته لاس کرم خاورے کیږی
که د خاورو په آرزو شم استغنا ک

جدائي د خدائے بلا شوه نهٔ توانیږم
خوشے زړهٔ مے په دیدن پسے ژړا ک

همره صبز دے عاشق سره له کومه
حه د نن وعده موقوفه په صبا ک

د اور جامے راواغوندے دلبره
په نظر زما جلوه لکه دیبا کړ
په خپل عشق کښے که څوک بد راباندے وائی
زهٔ ګمان کرم چه همه زما ثنا کړ
۸۰ ت په عاشق ښائی دا دستور دے
چه روغ خلق په رنځور پورے خندا کړ
ننګ و ناموس دی وبله لرے
په روښانه ورځ به څرنګه څوک غلا کړ
۸۱ زهٔ طمعه کرم د ګلو له طالع نه
ما عاجز لره د ګل په ځائے خار را کړ
۸۲ زهٔ ځان ژغورم په عشق کښے له عالمه
زمانه مے په جهان باندے رسوا کړ
په په عالم کښے وی سرخرویه
چه ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کړ
دا څواب رحمٰن هغه کا چه دولت دے
که دلبر د دیدن مئے پیالے را کړ
* ۳ * ۸۴ *

۸۳ زیب چه آرائش د تخت و تاج کړ
تخت و تاج به نے مرګے تاخت و تاراج کړ
۸۴ ن کښے به نے پاتے نه بد نوم شی
که دے چارے د کسری او د حجاج کړ
۸۵ زما په زړهٔ کا هسے چارے
لکه باز چه په تارو او په دراج کړ
۸۶ سترګو لره لارے اور د زړهٔ شو
څوک به څشکله ژوندون په دا مزاج کړ

زما اوښکے چه پیدا د زړهٔ له زیم شوے
لکه اور چه له کبابه نم اخراج کهٔ
زړهٔ غمزن د عید په جشن خبر نهٔ شوم
که نور خاق هائے و هوئے ته احتیاج کهٔ
هر ناوك چه د قضا له شسته خیژی
زمانه د رحمٰن زړهٔ ورته آماج کهٔ

* ۸۵ * م *

ماتم‌پوی مے خولهٔ په سوک خراشی مے زړهٔ په نوک
که نارے وهم که ژارم پروا نهٔ لرے یو چوک
راشئی گوری منصفانو د دلبرو دا سلوک
لکه گل په لاس د اغل زما زړهٔ کرهٔ شوک په شوک
د چشمانو په غمزه نے ژوبل ژوبل یم توک توک
د ملك په توسن سور شی ... په سر هوك
هیڅ اثر وربانده نهٔ کا د دردمندو ... و دوك
اے رحمانه چه عاشق شی ځان د ژاړی کوك په ...

* ۸۶ * ۵ *

عاشقان د ناصحانو وینا نهٔ کهٔ
مست هاتی د ماوتانو پروا نهٔ کهٔ
واړه جور د دے دهر مے قبول دے
که خدائے ما له خپله یاره جدا نهٔ ک
چه د گلو پریشانی شوه ورځر کنده
غنچے سر په زانو کیښود خندا نهٔ ک
... و سیلاب ته د ناروکی څه حاجت دے
زړهٔ چه ژاړی سترگے څرنگ ژړا نهٔ کهٔ

دنیـا کل په احمقـانو ده ودانه
دانا ځکه وابستګي د دنیا نهٔ کـړ
چه ئے زرهٔ وی په هوا بورے تړلے
د حباب عمارت ځکه بقا نهٔ کـړ
بے هنر دے چه ځوک دین په دنیا پلوری
هنرمند سرے دا هسے سودا نهٔ کـړ
که ځوک وائی هنر کوم دے وایه دا دے
چه بے خدایه نوره مینه په چا نهٔ کـړ
ګدائی که وریښېری ځائے دا دے
هر بادشاه چه دلجوئی د ګدا نهٔ کـړ
چه بے دل ئے په یوه نګاه رغیری
څه انصاف دے چه دلبر ئے دوا نهٔ کـړ
سر چه زرهٔ ئے وی په یار باندے بائللے
نوره مینه په چا بے له آشنا نهٔ کـړ
چه تر غوږ ئے وی وینا د آشنا شوے
هغه غوږ هرګز په نوره وینا نهٔ کـړ
اوبه نهٔ رسی د یار تر بلند پامه
چه د زرهٔ غولے روښن په ژړا نهٔ کـړ
زهٔ رحمٰن د هغه یار په ژړا خوښ یم
که اغیار مے خدائے له میانه پیدا نهٔ کـړ

*۹*۸۷*

هر چه ستا کوڅه ماوا کـړ ځائے ئے بر شی تر افلاکـ
ځان هاله ورته بادشاه شی چه ئے ستا د در ګدا کـړ
چه د ستا د در ګدا شی بادشاهئے ورته نور شا کـړ
نظر بے د ستا له رویه نهٔ په ارض نهٔ په سما کـړ

مینه بے د ستا له مخه ‌ ‌ ‌ نه په دین نه په دنیا ک

ستا په مهرو محبت کښے ‌ ‌ ‌ ځان جهان واره فنا ک

د دنیا کور و وګړے ‌ ‌ ‌ ستا په مینه کښے تالا ک

رضا ستا په قضا کیږدی ‌ ‌ ‌ ترکه خپله مدعا ک

و هر خوا ته چه ستا مخ شی ‌ ‌ ‌ دے غم مخ په هغه خوا ک

چه له چا سره جفا کړی ‌ ‌ ‌ له هغهٔ سره جفا ک

که له چا سره وفا کړی ‌ ‌ ‌ له هغهٔ سره وفا ک

که په عمر چرے خاندی ‌ ‌ ‌ خو له تا سره خندا ک

که په عمر چرے ژاړی ‌ ‌ ‌ خو په تا پسے ژړا ک

که مطلب ئے د دیدار وی ‌ ‌ ‌ ستا د حسن تماشا ک

که مطلب ئے د ګفتار وی ‌ ‌ ‌ ستا په ذکر مشغولا ک

د رښتینو مقام دا دے ‌ ‌ ‌ که څوک سینه په رښتیا ک

عاشقان په عاشقئے کښے ‌ ‌ ‌ چه رحمٰن وائی هم دا ک

*۸۸* ے *

نیمه اوتره په پری سره کلک

د روټئے طمع او مهٔ کړه له فلک

هر سائل چه سوال د نان کړی له فلکه

ګویا غواړی په کچکول کښے اوږمک

له آسمانه چه څوک طمع د وفا کا

دغه طمع ئے طاعون ګنړم بے شک

له ښاران سره هسے پلئے ووری

چه هر زخم ئے بد تر وی تر تورپک

که په چا ئے شفقت او مرحمت وی

ظلم جور به ئے تیرے وی تر اوزبک

مور به نهٔ شی هیڅ سرے بے قناعته
که ئے خونه وی په سیم و په زر ډکہ
یا به نه موسیٰ کمال بے کمینئے
که خیمه دِ وی د عرش د پاسه لکہ
که جهان په نور غالم باندے فراخ دے
په تنگ چشم باندے تنگ شی له چشمکہ
د دے دهر په یارانو کښے آب نشته
که ئے غواړی تر سما و تر سمکہ
ترخے اوښکے د عاشق آب و نمک دے
خدائے دِ نهٔ کا څوک بے آب و بے نمکہ
دا درازے اندیښنے مهٔ کره رحمانه
د دنیا چارے په تلهٔ دی تر دمکہ

* ۸ * ۸۹ *

زما اوښکے چه دا هسے شست و شوکہ
دا محنت واړه زما د مخ ابروکہ
د عاشق د سینے چاک به ورځ رکند شی
که څوک سروخپل گریوان وته رفوکہ
تل ئے مخ وی تر خوبانو پورے وللے
عاشقی چه د چا اوښکے په شیبو کہ
د عشق اور چه شمع خود په سر قبول کا
پروانه به څه حجت د ځان په سوکہ
گل څه نهٔ وائی چه غرق په وینو ناست وی
بلبل څه لره بے ځایه گفتگوکہ
زهٔ که مرگ غواړم بے یاره خو کرم نهٔ یم
جدائی سرے په ځان پورے په کوکہ
معشوقے په محنت نهٔ دی چا موندلے
مگر خدائے ئے په رحمٰن باندِ پیرزوکہ

* ۹ * ۹۰ *

چه په زړهٔ مے تور لحد شی د خپل چاک
بے مزه مے شی هم خوب هم مے خوراک

چه د خوب او د خوراک مزه شي ورکه
نور له مرګه برابر شي غفه ژواک
غلط وائي چه څوک عمر ورته وائي
هغه عمر چه تیریږي په پخساک
نن سپیره په خاورو د کله خوله بهتر وي
چه آخر مې دا خوراک دے دا پوشاک
ځائے لري که ځان ژوندے په زمکه خښ کړم
چه مې پس له مرګه ځائے دے یو مغاک
ګویا شوي دي هغه چه شدني دي
زۀ پخوا تر هلاکته یم هلاک
زړۀ چه روغ وي ګریوان کله څیراوه شي
له ګریوانه معلومیږي د زړۀ چاک
تن و ځائے و جامه هله پاک پکار دي
چه روښے شي د چا زړۀ له خیره پاک
سړے بویه چه درون بیرون ئے یو وي
نهٔ هغه چه درون زر وي بیرون لاک
له سړیه غرض واړه سړیتوب دے
نهٔ چه سر کښې ئے طره وي یا مسواک
د دنیا چارے همه واړه فاني دي
څوک یو دوه ورځے خوشحال وي څوک غمناک
په ساعت کښې څوک خوشحال کا څوک غمناک کا
دا خوبونه همیشه دي د افلاک
چه څه کاندي واړه خدائے دے نور څه نشته
رحمٰن څه دے څه ئے واک څه ئے ادراک
* ۱۰ * ۹۱ *

زړهٔ مے بے له خپل نګاره آرام نهٔ کړ
کامراني راځخه غواړي ناکام نهٔ کړ

بے ناکامه زيست محال دے په دنيا کښے
د کوم اس په خوله کښے دخل لګام نهٔ کړ

د آسمان ماڼرئے به هم په قرار نهٔ وی
سالک ځکه قصد د قصر و د بام نهٔ کړ

ګاه ئے کښينوی په تخت کله په خاورو
زمانه رضا د هيچا مدام نهٔ کړ

بے له سروے چه آزاده خدائے پيدا کړه
ترکِے ځکه و هيچا ته سلام نهٔ کړ

کوه و دشت هم د خزان له غمه ربړدی
ځکه زرکه و چمن ته خرام نهٔ کړ

چا چه سر دے په سجده و يار ته ايښے
دوباره له دے سجوده قيام نهٔ کړ

چه ئے کړه ده د يار په لورے لوښتي
لکه بحر هسے دروبی مقام نهٔ کړ

نشستن د عاشق نشته لکه شمعٔ
څو صورت د عشق په اور کښے تمام نهٔ کړ

چه محظوظ وی په تش بوئی د مهرويانو
هغه فکر د بوسے د پيغام نهٔ کړ

چه لذت ئے د سرو شونډو وی موندلے
نوره مينه د شرابو د جام نهٔ کړ

په هغو د لعلو لبو مئے حرام دے
څو دا نور لذت په خپسر حرام نهٔ کړ

رحمٰن هسې و خپل يار ته بې حجت دے
لکه عذر چه صاحب ته غلام نهٔ کا

* ۱۱ * ۹۲ *

چه خيمه ئے د سيلاب په مخ شوه لکه
د حبـاب تماشـنهٔ کـوره تر دمکه
هيڅ بکار نهٔ ده ويساه د بانړ په سوري
لا تر لاندے وي د څو لرګو کوډکه
دا د لاندے به همه واړه چيت پيت شي
مګر سروے چـا وکښـلے تر فلکه
چه په اصل خدائے نسکور وي پيدا کړے
څوک به څه خوري د دے دهر له بنانکه
چـه دبمن ئے وي له دوستـه اړولے
د هغـهٔ احتـياط بويه له کومکه
واښه واچوه د نفس و خولے ته خاوره
څو دِ نهٔ ده خولهٔ د ګور په خاورو ډکه
هر چه ډکه ئے د ګور په خاورو خولهٔ شي
په هغـهٔ به وي حـرامه نوره څکه
که نور څوک تبارکي کا څبله نوره
و رحمٰن وته خپل يار دے تبارکه

* ۱۲ * ۹۳ *

څو بو څله ئے تاراج په جفا نهٔ کا
يار له ياره سره مهر و وفا نهٔ کا
که ئے سر په بوسه ورکړم زهٔ بوغيږم
چه قبول به دغه عجز زما نهٔ کا
چه په خپله رضا تللے مادرزاد وي
هغه هيڅرے د نورو رضا نهٔ کا
څوئے خپله مدعا حاصله نهٔ وي
مهرويان په خولهٔ د خضر سودا نهٔ کا

که ئے سل ځله دعا کوم په عمر　　کوش وهوش د دعا کو په دعا نهٔ ک

که آهونه آتشین بسے اوکاږم　　لکه سرو له خزانه پروا نهٔ ک

که رحمٰن په عاشقئے کښے آرام غواړی
دغـه واړه ناروا کا روا نهٔ ک

* ۱۳ * ۹۴ *

---

که په هجر کښے څوک ما پوښتی له حال
حال خو دا دے چه ناتوان یم بے مجال

زهٔ د یار په دیدن ځکه شتابی کرم
چه د عمر بقـا نهٔ وینم تر کال

چه تر حسن تر جماله ئے زار نهٔ شم
شرمنـده یم د خوبانو تر جمال

تهٔ و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه
عشق بے نیاز دے له ثواب او له وبال

بے د خپل اشنا د حسن له تعریفه
هیڅ مے مهٔ پوښته له نوره قیل و قال

ما د عشق په درس کښے نور څه لوستی نهٔ دی
بے له زلفو بے له خط و بے له خال

په دنیا په آخرت مے د خدائے نهٔ کا
بے نصیب د مهرویانو له وصال

که یار سر په دیدن غواړی مهٔ جاروزه
دغه حکم رحمٰن کړے دے دلال

* ۱ * ۹۵ *

پیلتانه د هسے خوار کړو زما دل
چه له ځانه ئے ویزار کړو زما دل

عاشقئے همره داغونه دی پرے ایښی
چه تمام ئے لاله‌زار کړو زما دل

چه د زلفو په کمند سره دِ راکښو
په بلا دِ گرفتار کړو زما دل

ستا چشمانو پکښے هسے مقام وونیو
چه له غیره ئے ویزار کړو زما دل

لاس و پښے د خلقو نیسی دعا غواړی
مینے هسے منت‌بار کړو زما دل

بے سببه چا آزار سوندلے نه دے
تا په څه سبب آزار کړو زما دل

زهٔ رحمٰن خو منت‌بار د عاشقئے یم
چه میئن ئے په دلدار کړو زما دل

* ۲ * ۹۹ *

ما چه سترگے و گل رخ ته واړولِ
په هغو سترگو مے وینے اوڅرلِ

د عمل جزا مے پیاموندہ بر حق
دا دستور دے چه کړے هغه اخلِ

تر غمزو ئے یو په سله زرهٔ قاتل دے
تل چړے تورے په کاڼرے تیرولِ

خود کرده به څه تاوان له چا نه غواړی
چه ئے غوښے په خپل تیغ کړے سپینے خپلِ

ما لا مرگ دا ستا په مینه کښے هاله لید
چه گدا د بادشاهئے لاقے وهلِ

له خوبانو نه به څوک څه وفا غواړی
سروِ کله د کشمش میوه نیولِ

په دربار ئے سنداسی شه ورته کښینه
تار په تار د سر ویښتهٔ ایرے مبتل

که دفتر د خپل قسمت د چا په لاس وے
بدے برخے به چا کلـه قبلول

بــه نیکی ئے ورکوله و نیکانو
دے بدانو څه بدی نهٔ وه غوښتل

څوک له خاورو ایرو پاسوی تخت ورکړی
څوک له تخته د ایرو په ډیران ږول

ستا چه نیت د آشنائے نهٔ وو صنمه
د رحمان سترګے دِ ولے نهٔ ګنډل

د ازل په ورځ د برخو جړاری وه
اے رحمانه چا بائلودے چا ګټـل

* ۱۹۷ * ۳ *

چه له نازه پوشیده اری چشمان خپل
څه به وینی مقتولان او مظلومان خپل

چــه کنځل راته په قهر قهر کاندی
دا لا اوګڼری په ما باندے احسان خپل

ګفتګو په اشارت کاندی له نازه
کله اسم د چا اخلی په زبان خپل

په ګریبان باندے چه تک وهی غوټئے
عاشق کښیباسی لاسونه په ګریبان خپل

خریدار ئے له حیرته بے شعور دی
چه د حسن رخت څرګند کا په دکان خپل

چه خپل مخ به آئینه کښے ور څرګند شی
خود به خپله سرفرو کاندے په ځان خپل

چه هر څوک نے عاشقئے وته هوس کا
ګویا لوبے کا په دین او په ایمان خپل

هیڅ صرفه د چا په سر و په مال نهٔ کا
ما لیدلی دی په خپله مطلوبان خپل

مجنون ملک د عاشقئے هاله خپل کړو
چه په اور باندے نے اوسو خان و مان خپل

هیڅ د سترګو غړولو خوند نے نهٔ وی
چه رحمٰن په سترګو نهٔ وینی جانان خپل

* ۹۸ * ۴ *

څو تر منځه ورانه نهٔ کړی د تن ډول
وو به نهٔ رسی تر خدایه تر رسول

خدائے و تا ته دین دنیا په غوره کیښود
تا دنیا کړه په دا دوارو کښیے قبول

تر حرص په هورته بله بلا نشته
دا بلا د ستا په خونه شوه نزول

بو ساعت د خدائے په ذکر مشغول نهٔ شوے
تمام عمر د خپل ځان په غم مشغول

چه باقی زندګانی په فنا پلوری
ځان په کوم دانش دانا بولے مجهول

د خالقه رُو ګردان شوے و مخلوق ته
بیا و ځان ته عاقل وائے نا معقول

نصیحت لکه هلک دربانده تریخ دے
د دنیا په شیرینئے یے ملول

چه رحمٰن غوندے خورسند نهٔ شی په قول کښې
خلاص به نهٔ شی په هیڅ رنګ د زړهٔ له غُول

* ۵ * ۹۹ *

---

زړهٔ د یار په درد و غم کښې شادمان یم
لکه ګل د پریشانئے په وخت خندان یم
تهٔ زما و بے کسبئے ته نظر مهٔ کړه
خدائے ساتلے لکه ګنج په بیابان یم
لکه اونه د ځنګل په میوه پوره
په ویرانه ویرانئے کښې آبادان یم
یو وینبتهٔ مے د صورت بے عشقه نهٔ دے
څوکیدار په هر نفس د خپل کاروان یم
د وصال فارغه د اوښکو دانو راکړو
لکه لعل و دُر په غاړه د خوبان یم
د کاملے عقیدے له برکته
د دونهے په غاړه ناست شاه جهان یم
روښنائی مے په طلب کښې شوه حاصله
شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان یم
چه صفت د تورو زلفو د اشنا کړم
پلے سر په لویه لار د هندوستان یم
بے مینه مے هیڅ حال د صورت نشته
لکه بے مال و متاع تش دوکان یم
د هوس بلبل ویساه را باندے نهٔ کا
د افلاس له کبل ډکے د خزان یم
دلبرانو وته خاکسترتلی لاندے
د دے نور جهان په سر لکه آسمان یم

چه د یار په دیدن سر و سال بنیندم
خلقو واورئ زۀ هغه عبدالرحمان یم
په هر دم کښې نوے نوے تماشا کړم
زۀ رحمٰن د خدائے و کړو وته حیران یم
*۱*۱۰۰*

په ښۀ خوئ له بدخواهانو بے پرواه یم
په نرمئے لکه اوبۀ د اور سزا یم
و هر چا ته په خپل شکل څرګندیږم
آئینه غوندے بے رویه بے ریا یم
قناعت مے تر خرقے لاندے اطلس دے
پټ د درست جهان بادشاه ظاهر ګدا یم
د غنچے په څیر په شل ژبو خاموش یم
لکه بوئ هسے په پټه خولۀ ګویا یم
په ژړا مے د خپل یار دیدن حاصل کړو
د شبنم په څیر د ګل سره یکتا یم
هم په دا سپینو جامو په معلومیږم
لکه ابر هم ګوهر یم هم دریا یم
دراز عمر مے حاصل شو له راستئے
لکه سروے مدام سبز و تازه پا یم
که چا لار د عاشقئے ده ورکه کړے
زۀ رحمٰن د ګمراهانو رهنما یم
*۲*۱۰۱*

صبح و شام مے لاس نیولے دے دعا کړم
خواست له خدایه ستا د مهر و د وفا کړم

هيڅ دروغ رښتيا مے نه زده که باور کړے
ستا د پاره هم دروغ و هم رښتيا کړم
واړه ته ئے خندول که ژړه ول کړے
زۀ په خپله نۀ خندا کړم نۀ ژړا کړم
که ته نۀ ئے بارے وايه راته څوک دی
زۀ دا هسے ليونے و مجنون چا کړم
خوب خندا د بيلتانۀ په زمکه نشته
څه آرام به په دا دشت کربلا کړم
هره ورځ چه مے تيريږی ستا په غم کښے
زۀ په هره ورځ پوهيږم چه غزا کړم
يو ويښتۀ مے د صورت کوږ شوے نۀ دے
هسے رنګ دِ پټ پنهم په زړۀ ادا کړم
زړۀ که يو وی ما خو تا له دے درکړے
مګر نورو لره نور زړونه پيدا کړم
چه مے واغوست سر و پائے د عاشقئے
زۀ رحمان دِ سرو پا بے سر و پا کړم
*۱۰۲*۳*

څکه هزار څله نزدے د زړۀ په ياد يم
زۀ چه يار په سترګو نۀ وينم ناښاد يم
که يار سل څله وعدے د وصال او کا
زۀ له ډيرے تلوسے بے اعتقاد يم
په جفا او په وفا ئے لارغۀ نۀ شی
هر حذر د ناز پرور په کړي داد يم
د بے نيازو په نياز څه اميد د کړو دے
زۀ پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد يم

معشوقې د عاشقانو دین ایمان دے
زۀ به چا لره خپل دین ایمان ور نۀ کړم
ستا تر زلفو پورے نورے زلفې څه دی
په خاشاک به د چمن ریحان ور نۀ کړم
په رحمٰن دا ستا د لبو مئے حرام دے
څو د خپلو وینو جام تاوان ور نۀ کړم
*۱۰۵*٦*

دا یو څه رنگې ژوندون دے نۀ پوهیږم
خواب و خیال دے که افسون دے نۀ پوهیږم
جام د سیو چه د ځان په وینو موسم
ترو زلال که جګر خون دے نۀ پوهیږم
د پتنګ او د بلبل نر میان حیران یم
مغز دِ اوږ دے که ګنګون دے نۀ پوهیږم
په شانه سره دِ تار د زلفو بیل شو
که غوخ شوے سے نازون دے نۀ پوهیږم
عشق په هسے رنګ مقام باندے قایم کړم
چه وصال دے که بیلتون دے نۀ پوهیږم
د خپل زړۀ و علامت وته حیران یم
چه موسیٰ دے که قارون دے نۀ پوهیږم
د رحمٰن څیره نے زیړه تر زعفران کړه
خدائے زده عشق دے که طاعون دے نۀ پوهیږم
*۱۰٦*٤*

بیا دِ نرې شراب څښلې دی پوهیږم
په رخسار د ګل کرلی دی پوهیږم

که هزار ځله لاس سرۀ کړے په نکریزو
تا زما په وینو والی دی پوهیږم
معرکه زما د مرګ نهٔ ده نور ځه ده
رقیبان چه تا بللی دی پوهیږم
ځه حاجت دے چه دِ خط په ملا لولم
چه زما په باب دِ کښلی دی پوهیږم
تهٔ خپل جور و جفا ځه وائے و ما ته
ما همه واړه لیدلی دی پوهیږم
چه رقیب او تا غوړونه وبله ورکړۀ
ما هغه ساعت ژړلی دی پوهیږم
رقیبان ځکه تیرے په رحمٰن کاندی
چه تا خوا پورے نیولی دی پوهیږم

* ۱۰۷ * ۸ *

په لیمۀ کښیے مے مدام
عکس ګرځی د ګل فام
تورے سترګیے مے ګلګون شوے
په آرزو د ګل اندام
بے د سترګو له خونابه
نهٔ باده لرم نهٔ جام
په طلب د دل آرام کښیے
ما اونهٔ لیدۀ آرام
زنخدان ئے خدائے کوهے کړۀ
ورخوئیږم په هر ګام
نه ئے خال د مخ غلام دے
زۀ غلام یم د غلام

که د یار له لاسه اور راباندے بل وی
لکه شمع مستقیم په خپل استاد یم
بے مئیـنه قرارے راباندے زوک دے
شپه او ورځ په حرکت کښے لکه باد یم
که همه عمر مے یار په غیږ کښے ناست وی
زۀ له غمه به د هجر په فریاد یم
یو زمان مے د زړۀ مراد موندلے نۀ دے
پیدا کړے خدائے په اصل کښے نامراد یم
د وصال په یوۀ کال مگر بر پائے شم
د هفتے په هجر هسے بے بنیاد یم
چه ئے نوره نتیجـه نشـته بے غمه
حق حیران د عاشقئے په دا داد یم
په وصال کښے مے د هجر طمعه نۀ وه
اوس حیران متحیر په دا فساد یم
بے له عشقه چه مے پرے شو د پوزے
کنړه نور له جملگی قیـده آزاد یم
که مے پیری که مے پلوری چاره نشته
زۀ رحمن د بنائسته وُ خانه‌زاد یم
* ۱۰۳ * ۴ *

زۀ د یار په درد و غم کښے غرقاب خوښ یم
په دا اور کښے بے طاقت او بے تاب خوښ یم
که ډوبیږم په اوبو کښے په اور سوزم
د سرو شونډو په آتش و په آب خوښ یم
چه د یار د خط و خال نخښے پکښے وی
زورند سر په مطالع د کتاب خوښ یم

دا پوچه گفتګو چه ئے زهٔ آورم
په نغمه په ترانه د رباب خوښ یم
د ریا تر نا قبولـه عـبا د تـه
د ساقی په میو مست و خراب خوښ یم
چه نهٔ علم نهٔ تسبیح نهٔ تلاوت وی
له دے هسے بیدارئے نه په خواب خوښ یم
د طوبئ د ونے سورے مے خوښ نهٔ دے
ستا د مخ په لنبو سوے کباب خوښ یم
خاموشی که هر څو لویه مرتبه ده
زهٔ له یار سره په سوال په ځواب خوښ یم
د یار ډیرے غمخوارئے یم عاجز کړے
رحمٰن ځکه په خوردن د شراب خوښ یم
*۱۰۴ * ۵ *

دا ستا درد به په هزار درمان ورنهٔ کړم
دانسته به دغه سود په زیان ورنهٔ کړم
که څوک راکاندی دنیا او عقبیٰ دواړه
عاشقی به دِ په این و آن ورنهٔ کړم
که مے چرے لاس دا ستا په بوسه برشی
دا نعمت به د جنت په خوان ورنهٔ کړم
څو مے تیغ په پهلو نهٔ دے لګیدلے
ستا پهلو به و رقیب آسان ورنهٔ کړم
که بو ځلے مے ستا زلفے په لاس کښیوزی
یو ویښتهٔ به دِ په درست جهان ورنهٔ کړم
څو اونهٔ وینمه ستا سترګے که خدائے کا
عزرائیل لره به همره ځان ورنهٔ کړم

که په عشق کښې ناکام دیر دے
هٔا ناکام دے زما کام
خوښ یم زهٔ په عاشقئے کښې
که نیک نام یم که بد نام
په یارئے کښې مې قبول دے
ملامت د خاص و عام
د دعا په عوض غوارم
د خپل یار د خولے دشنام
تر کنځلو به ئے زار کړم
دغه خپل دعا سلام
تلخ گفتار ئے راته خوږ دے
تر کشمش او تر بادام
هم هغه مې مسیحا دے
چه ئے راکاندی سلام
مخ د یار ماهِ تمام دے!
رحمٰن وليدو تمام
*۹*۱۰۸*

چه له مرکه بے پروا ئے په هر دم
نور همه واړه غمونه به دِ هیر شی
چه زخمی ئے صبا نهٔ سومی په بیعٔ
د مرهمو تیارے ورلره بویه
چه دِ تن له سرایه دروسی توښه واخله
د دے لارے تلهٔ څه هسے آسان نهٔ دی
که دِ ویره شی له ظلمه له ستمه
که امید زرے له رحمه له کرمه

دغه هسے غم دِ هیر دے په کوم غم
که یو ځل دربانده راشی دا ماتم
مفت موندهٔ شی نن ساعت هغه مرهم
چه لا نهٔ ئے د اجل په تیغ کړم
تر داسرائے په هورته سرائے نشته محکم
مشکلات دی په هر دم په هر قدم
تهٔ هم مکره په هیچا باندے ستم
ستا هم بویه په هر چا باندے کرم

له هرچا سره چه کړے هغه به مومے — د هیڅ تخم میوه نهٔ دروسی برهم
اجر واړه د عمل په اندازه وی — دغه دواړه سره یو دی هم درهم
او س د ستا رضا، نیکی کړے که بدی کړے — نیک و بد دِ دواړه کښوے شی په قلم
خدائے د رزق په زیزمه مهٔ هیره وه کلکشه — تر سړی د سړی رزق دے مقدم
که کړکړے چه په حرص سره څه زیات شی — زیات به نهٔ شی د یوے ستنیٔ تر سم
که هزار رنګه تالاش او تردد کړے — د قسمت شوے به نکړی زیات و کم
ډیر هوا و حرص مکوه خدائے یاد کړه — دے کافی دے د عرب او د عجم
په تا فرض عبادت د خپل څښتن دے — نهٔ لښکرے خزانے ملک و حشم
توک روتئی یوه شړئے در لره بس ده — نور همه واړه اسراف دے مسلم
له خوړا که غرض قوت او لایموت دے — نهٔ چه غوښے غوړی وریژے یا غنم
له پوښا که غرض خپسر پټول دی — نهٔ اطلس و سقلات تاج و علم
د لحد د تاریکئے علاج به څه کړے — چه تهٔ دلته کښیے ویریږے په تورتم
غفلت هیڅ مناسب نهٔ دے د سپین ږیری — خوب روا نهٔ دے په [illegible] د صبحدم
مار چه سوری لره ورشی کوږه سم شی — تهٔ د کور په غاړه راغلے نهٔ شوے سم
خم قامت د دنیا کار کړے عمر واړه — او په دوه رکعته نفلو نهٔ شوے خم
ځان پخوا تر هغه وژاړه که مرد ئے — چه به تا باندے ژړا کا نور عالم
نور عالم چه په تا ژاړی انصاف او کړه — بے انصافه تهٔ به څه ئے خوش خرم
که زهٔ نهٔ وائم تهٔ خود ستر[illegible] — [illegible] که آدم

اے رحمٰن [illegible] چه په [illegible] کرم ئے
بل به نهٔ وی په جهان کښے هسے کرم

*۱۰*۱۰۹*

څو به صبر په جفا د یار کوم
څو به موم د نمر و مخ ته کرزوم
عاشقی او صبوری سره دروغ دی
زهٔ دا لاف په دروغ څرنګ وهم

که وماته نصیحت مکړه ناصحه
زهٔ دا خپل تخم خپل ځان لره کرم
ما خو زده چه مینه اور دے خدائے مینن کړم
دانسته خپل سر و اور ته آچوم
سر رشته مے خدائے د یار په لاس کښې ورکړهٔ
په هر لور چه مے راکاږی هسے ځم
د آشنا د مینے لاس زما ګریوان دے
زهٔ په دا کار کښې هیڅ عذر نهٔ لرم
عاشقانو باندے حق د معشوقو دے
حق به ولے په باطله بدلوم
ما چه فرض په خپل ځان کړه د یار مینه
ترو له فرضو غاړه ځرنګ غړوم
دا څه ژوند دے چه یار نهٔ وینم په سترګو
زهٔ رحمان په جهان ...کے عروم
* ۱۱ * ۱۱۰ *

که په سر د هغه یار له لاسه سنګ خورم
خدائے دِ نهٔ کا چه بهٔ بله خواته ځنګ خورم
عاشقی او ننګ ناموس دی سره لرے
څو به عمر واره غم د نام و ننګ خورم
خدائے و ما و ته شیرین کړو تر شکرو
که د یار له لاسه غشے د خدنګ خورم
د آشنا د بیلتانهٔ په کار و بار کښې
همیشه په تندی توره د فرنګ خورم
نوکری د معشوقو کوم په عشق کښې
مهینئے نهٔ د بهلول نهٔ د اورنګ خورم

شین لوګے مے په سر چتر دونهه تخت دے
ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم په دا چه له خودئے شمه بے خوده
د هجران په غم کښیے لیے لیے بنګ خورم

لکه څوک چه نعمتونه د دنیا خوری
زهٔ د یار د کوڅے خاورے په دا رنګ خورم

واړه زهر شی زما تر ستونی دروسی
بے له یاره که همه لاچی لونګ خورم

زهٔ رحمٰن به څو ژوندے په دنیا پایم
چه په بلو لنبو سُرخ لکه پتنګ خورم

* ۱۲ * ۱۱۱ *

---

راکوی د بیدردئے پیغوروںٚ
بلوی مے په تندی باندے اوروںٚ

نور څه نشته واړه غوښیے دی د زړونو
چه وژلے شی د تږکو په تیغونٚ

هر نګاه ئے په وکښو د زړونو شیر دے
همیشه راباندے آزمائی زوروںٚ

خدائے دِ تور چا ته دتورو ستر‌ګو نهٔ کا
عالمونه ئے ورکیږی په توروںٚ

بو د حسن اور دِ بل کړو په جهان کښیے
په دا اور باندے ؤسوهٔ ډیر کوروںٚ

زهٔ د یار په مینه غل کړم رقیبانو
ښیږهٔ نور ئے کوم راهورے دی ږږوںٚ

د رحمٰن د عاشقئے هسے غږ اوشو
چه هرپا ئے شو په هر ښهر کښے شورون

* ۱ * ۱۱۲ *

که له مخه، یوه خوا کا، حجابون
خدائے به ورکا و خوبانو ثوابون
کله وی، چه یو په رنګ د هغه یار شی
که هزار شی په اسمان کښے آفتابون
په ګرداب د زنخدان ئے هسے غرق یم
هیڅوک مه شه غرق په هسے ګردابون
لکه زهٔ چه ئے له غمه په عذاب یم
خدائے دِ نهٔ ږدی په چا هسے عذابون
ګفتګوئے مے هیڅ اثر ورباندے نهٔ کا
که له غمه ئے تصنیف کړم کتابون
په یوهٔ جواب مے رد کا هر یو سوال
هسے کاندی د سوالونو جوابون
هیڅ پایاب د فن فریب ئے موندهٔ نهٔ شی
څوک به څه غواړی د بحر پایابون
که لږ سترګے وبله کیږدم راته وانی
په یارئے کښے عالم کله کا خوابون
مال و ملک ئے همه واړه اوبهٔ یوسی
د هغو، چه څی له سترګو سیلابون
د آبرویو و محراب ته ئے حیران یم
څه نسبت لری بتان و محرابون
ما هالهٔ له پارسائی نه وو لاس نیولی
چه په لاس کړهٔ مطربانو ربابون

ارغواني جامې ئې واغوستې رحمانه
بيائې جوړ کړۀ ستا د قتل اسبابونه

*۲*۱۱۳*

په خاطر مې غلبه شو ستا غمونه
لږ د خدائې د پاره کېږده قدمونه
څه خو قياس زما د ډېرو اوښکو اوکړه
چه په تن کښې مې وو چرې دا رودونه
ستا د حسن مار چه ئې اوخوړې نۀ رغيږي
که بې تا په ځان پوکې هزار دمونه
که هزار هزار دمونه په ځان پو کا
نور به نۀ کا په دمونو قسمتونه
له قسمته خلاصيدۀ د هيچا نشته
که داخل شي د مکې په حرمونه
سر ئې کله په کوشش تر ځايه رسي
څو د خدائې له لوريه نۀ وي کرمونه
چه توانګر د قناعت په خزانه شي
نور به څه کاندي دينار او درمونه
قسم اوخورې له خوبانو بيا ئې مات کا
څه باوړ دے د رحمٰن په قسمونه

*۳*۱۱۴*

ژوندي کاندي د دنيا کاروبارونه
په مړو پريوانۀ د خاورو انبارونه
څوک سرتور پېښې ابله خاورو لره درومي
چا کاږۀ دي په سر ابنې دستارونه

پښه استوږنه د دوه رونړو سره نه شي
بلکه اخلي يو تر بله پيغورون
د يوے اونے له ښاخه پيدا کيږي
په چمن کښے هم گلونه هم خارون
همره خلق هره ورځ له دنيا دروي
چه ئے نه څه حساب شي نه شمارون
يو يو وار دے، په هر چا باندے تيريږي
هميشه به په چا نه وي دا وارون
ډير له سره مے تودۀ بازارکي تير دي
څوک دِ نۀ کړ په ما قينچ د بازارون
جدائي د اشنايانو هر دم کاندي
په رحمٰن باندے د تورو گذارون

*۱۱۵*۳*

دريغه اوسے ليدے يو ځل هغه مخون
چه دراز لري مژگان دراز قدون
دراز قد، دراز مژگان دراز زلفے
ورے شونډے، وره خوله، وارۀ غاښونه
د آسمان شمس و قمر به ترے قربان کړم
هم د زمکے په سر وارۀ سرۀ گلون
چه ئے اووينم په مخ مے اوښکے دروسي
د پسرلي له مخه اوري بارانون
که يو ځله ئے مخ اووينم په سترگو
ما به زرۀ کښے قبول کړي دي نذرون
د هجران په شپه سور کټ راته سور اور شي
يو زمان مے باندے نۀ لګي ارخون

چه په سپینو ا ننگو دِ زلفے زانگی
ښامار ان دی د چندنړو په ښاخونَ
که خدائے غم د جدائے ورته آسان کړو
و رحمٰن و ته آسان دی نور غمونَ

*۵*۱۱۶*

که ستا خپل سیه روئی نه وے دښمنَ
آئینه زما د زړهٔ نهٔ ده خچنَ
تهٔ چه ما وته د عیب په نظر ګورے
دغه واړه عیب له تا دے اے عیب جنَ
خپل صورت په آئینه کښے هر څوک ګوری
که چهره د چا صفا ده که ریمنَ
چواړے د حلال خور به نامه بولی
له ښو خالقو بد ګوئی نهٔ ده ممکنَ
تهٔ چه بدٔ که د بل واڼې زهٔ زیربوم
چرث خپله بدی نهٔ کړے معینَ
تر هغو نه به وړومبے ستا عیب څرګند شی
چه هر چا وته دِ کړے ده خندنَ
هر څه تخم چه کړے هغه به یوسے
خپله خپله میوه نیسی هره اونَ
که له خپله عیبه ځان ژغورے رحمانه
د هیچا له عیبه مهٔ کوه پوښتنَ

*۶*۱۱۷*

ما وے زهٔ به نهٔ کړم په خوبانو باندے مینَ
مینه د خوبانو اوچوی د صورت وینَ

خدائے زما په بخره عاشقي کړه له ازله
خوښ يم په دا بخره که ترخه ده که شيرين
زهر دے که قند دے هم په خپله خوله څر کندد ے
نه موسي څوک خوند د بل د خولے د انګبين
زکه هغه سوزي هر چه اور ورباندے بل وی
روغه خلقه شوه د رنځورو تماشبين
نه توبنه مے نه شي په تش داړ د کور و کلي
سړد بويه چه واخلي د غم پيټے له غمګين
نور عالم به څه کړم زه مريد د هغه کس يم
هر چه و ما. را کا يو پيغام له نازنين
څو به دواړه سترګے غړه ووم له هسے غمه
څو به مے تل څاځي د غم اوښکے له آستين
سر د رحمٰن دروسی د هجران په تيره توره
ته ئے نګهبان شے يا اله العلمين

*۱۱۸*ے*

فراموش مے کړو د ستا په مينه ځان
ځان لا څه دے بلکه عمر جاودان
لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ يم
همره عيش و طرب نه لري شاهان
لکه زه چه ستا د غم پند و نه اخلم
همره پند اخستے نه شي پهلوان
هسے بے سر و سامان يم ستا په عشق کښے
چه آګاه نه يم په سراو په سامان
دا به څه رنګ شي چه ته د کال وعده کړے
په ما نه تيريږی بے تا يو زمان

هسې بې شرابو مست یم ستا په مینه
چه خبر نهٔ یم له زمکې له آسمان
تمامي عمر دا ستا په طلب ورک یم
لټوم دې په هر ښار په بیابان
که له دره ئې شړې که ئې پرېږدې تهٔ
دیر مېښن دې ستا په مخ عبدالرحمٰن
*۸*۱۱۹*

چرته د یار شونډې، چرته غم د دل و جان
چرته کوتی لال او چرته، لعل د بدخشان
پاک و منزه دې عشق د نفس له خاصیته
چرته چاه د کېډې، چرته چاه د زنخدان
لږ تفاوت نهٔ دې د رندئ د زاهدئ
چرته زلمي جونه، چرته کنډې یتیمان
واړه بې وقوف دي چه څوک دین په دنیا پلوري
چرته پنځه ورځې، چرته عمر جاودان
زار شه د هوا و حرص خیال، د قناعته
چرته ملک د مصر، چرته دِه د غلامان
نهٔ شي د خانانو د ملنګو سره کلې
چرته عزیز خان چرته ملنګ عبدالرحمٰن
*۹*۱۲۰*

که ترې ولوېته شاهان او سلطانان
هیڅ نیمګړې په چا نهٔ شو دا جهان

که هزار هزار فنا شي په يو دم کښې
بيا پيدا شي په يو دم کښې هزاران
د رفتن د آمدن حساب نے نشته
لکـه بحر چه بهيـږي بے پايان
يو د بل په غم نهٔ نرم وي نهٔ کرم
هم د هغه زده چه ور نے شي په ځان
پيغمبر غوندے صاحب تر دنيا تير شو
دا دنيا ويرانه نهٔ شوه په هجران
چه دا هسے عالم لاندے شو تر خاورو
د چا ياد وي ما او تا غوندے سگان
که غلبيل کړم د تمامے دنيا خاورے
بيا به نهٔ مومم دارا او شاجهان
هوئ د نام او د نشان نے پاتے نهٔ شو
چه دعوئ نے کړه د نام او د نشان
که دروغ وايم ته ورشه نظر اوکړه
د خپل پلار او د نيکهٔ په گورستان
چه نے ته په دوارو سترگو ښکلولے
گوره څه شوے هغه خولے، هغه لبان
چه مدام نے په قربان قربان بللے
اوس د خيږ دربانډے وکا چه قربان
د رحمٰن و سوزان شعر ته حيران يم
چه نے اور بل شوے نهٔ وي په ديوان
* ۱۲۱ * ۱۰ *

که ښخوا تر آشنايئے نهٔ وے بيلتون | ما به نهٔ وو له چا کړے پيوستون
چه مے يار په سترگو اوليد ما گمان کړو | چه هم دا ساعت مے پياموندو ژوندون

په نیمګړی داد خبر د د نیا نۀ وم
نن ساعت چه له دے حاله خبردار شوم
هر زحمت چه په ما راشی شکرانه کړم
اوس که لاس زۀ ویله یوم هیڅ سود نۀ کا
لکه نمر په ځلورم آسمان ځلیږی
چا چه نخښته له بڼۀ مخه را کوله
په دا هسے حال کښیے څرنګ صبوری شی
که په صبر سره تور کا نړے لعل کیږی
د دنیا هوس په ما باندے حرام شو
دریغه یو ځله هغه زما په حال شوے
و رحمٰن ته ځان هغه ګړیٔ آسمان شی

چه به بیا شی په ستنه راځخه ستون
تر نن ورځے نه بهتره وه پرون
عاشقئے تر هسے حده کړم زبون
هغه چاره چه له لاسه شوه بیرون
محبت ئے له حجابه کړم بیرون
اوس دِ سور په نیلی ګرځی د ګردون
چه دښمن دِ کامرانی کا تهٔ محزون
لعل ئے مه ګڼره په هسے جګر خون
د هوسئے هسے کړم شپه، په میړتون
چه و ماته لولهوی صبر سکون
چه دے ستا په غم کښیے ناست وی سر نګون

*۱۱* ۱۲۲*

ورکه عاشقی شه هم ئے نوم هم ئے نشان
زۀ ئے هسے خوار کړم لکه خاک د بیابان
زۀ د عشق په کار کښیے تیر تر سره هم تر مال یم
دریغه که په سر یے دا مشکل کا خدائے آسان
کیوتم د عشق په آدم خورو ګردابونو
نهٔ په وراندے تلے شم نهٔ په وروستو ګریزان
رنځ د عاشقئے چه زۀ ظاهر کړم و طبیب ته
هیڅ ونیلے نهٔ شی طبیبان او حکیمان
راشه عاشقی رحمانه مکړه اوکه نه وی!
تل په اور به ناست ئے که بادشاه ئے د جهان

*۱۲* ۱۲۳*

تهٔ چه هسے ګاه ئے ترش ګاه ئے خندان
له عاشق سره کینه کړے که احسان

له احواله د چا، نهٔ زده چه به څه کړے
کله جور کله لطف کړے عیان
رنځ راحت د عاشقانو واړه ته ئے
دا دروغ دی که وصال دے یا هجران
هغه شونډے چه خوږے دی تر شکرو
له کنځلو ئے عار نهٔ کا عاشقان
رجوعات د بنائسته ؤ چا ته نهٔ وی
هرګز نهٔ وی سر کوزی د سروے شان
دغه هسے رنګ بنائست لکه چه ستا دے
نشته دا رنګه بنائست د عیځ انسان
قصد تر هسے حده ولے کړیے ګل رخه
چه له ډیره نازه وژنے عاشقان
د مرئے صورت څه روغ له کاڼړی نهٔ وی
نشته کاڼړی سره ستا د جفا توان
و هر چا وته چه ستا قوت ښیږی
هلته نهٔ رسی قوت د درست جهان
ستا له جوره زهره نهٔ لری چه آه کا
که کشور د عاشقانو شی ویران
خوار حیران لکه عاشق دے ستا نه درځه
خدائے دِ هیڅوک هسے نهٔ کا خوار حیران
لکه ډیر وائی د وصل راحتونه
دغه هسے د ذلت دے سخت زندان
د رخسار نخښے دے واړه د خورشید دی
چه ئے درست جهان له نوره دے روښان
له هوسه دِ هر ګل کره خندا شوه
چه ئے اولید ستا د حسن ګلستان

کله وی چه نصیحت کاندی عاشق ته
که له حسن دِ آگاه شی زاهـدان
رنګ د روئ دِ لری رنګ د سرو ګلونو
توری څنړے دِ ښاخونه د ریحـان
سیاهی د نوی خط دِ هسے زیب کا
لکـه ښکلی واړه توری د قـرآن
و کوهی ته چه لغزش کا کل خطر وی
کل حیرت دے کوهے ستا د زنخدان
که د دُرو تجلی ده دیره دیره
دُر تاریک شی چه ظاهر شی ستا دندان
ته سلطان د ښائسته وُ ئے دلبـره
دا نور واړه ښائسته دِ نوکـران
که دا نور ښائسته ستوری وئیل کیږی
ته خورشید غوندے صورت لرے عیان
له هر چا چه آوریدهٔ شی دغه وائی
چه ښائست دِ ذره نهٔ لری نقصان
دُر و لعل شُو وئیل د رحمٰن څکه
چه دے ستا د لعلو شونډو شو ګویان
* ۱۳ * ۱۲۴ *

څو به شمیرم زهٔ غمونه د هجران
همـره ډیر دی لکه ریګ د بیابان
د سری د دشمنئے طاقت مے نهٔ وو
خدائے را پیښه دشمنی کړه د آسمان
لکه څوک چه د اوښ بار په سړی کیږدی
هسے زهٔ یم په خپل غم پورے ناتوان

لکه اور د بیلتانهٔ چه په ما اوری
چا لیدلے کنړهٔ اور دے په دا شان

د یار غم به مے هغه سرے په شمار کړی
چه شمیرلی ئے ویښتـه وی د خپل ځان

که څوک وائی حال دِ څه دے په هجران کښے
په خاطر دِ تصور کړی دوزخیان

ناقراره روح مے پاس په هوا والوت
تش صورت مے په ځائے پاتے شو حیران

د یار دم مے زړهٔ په غټو سترګو یوړو
لکه بت چه په دیوال کښے شی حیران

ما وے زړهٔ د مومن عرش دے خبر نهٔ وم
چه به عشق زما دا عرش کاندی ویران

عاشقئے ئے تر هغه حده بیهوش کړم
چه نهٔ هوش لرم نهٔ سر او نهٔ سامان

لور په لوری د تهمت په غوندو ویشت شم
سلامت را باندے وائی درست جهان

چه دا حال وړاندے نهٔ وی ذړغلے
په وئیل به څه پوهیږی د رحمٰن

* ۱۴ * ۱۲۵ *

خان سلطان د دے جهان | آخر دروسی خوار حیران
د قضا په ذیل تـړلی | په مثال د بندیوان
شیرین ځان ورځخه دروسی | نهٔ ئے زور شی نهٔ ئے توان
که شندی مال و ملک دواړه | هیڅ رنګ نهٔ موسی امان
نهٔ ئے مل نهٔ ئے حامی وی | درد ئے ورشی په خپل ځان
درسندِ ورته ولاړ وی | وزیـران او وکیـلان

هیڅ دارو کولے نهٔ شی — کوز کوز کوزی حکیمان
بادشاهی نے پاتے کیږی — زرهٔ نے چوی په ډیر ارمان
چه نے روح له تنه بیل شی — نور پرے ژاړی فرزندان
یو ساعت ورباندے ژاړی — آخر صبر کړی خواران
بیا نے غسل لره واخلی — په تخته باندے عریان
په جامو نے خوشحالیږی — مرده شویٔ او غاسلان
چه له قبره نے بازګشت شی — مال نے یوسی وارثان
په مسند نے دعوی کاندی — هم دوستان هم دښمنان
سهیلئے نے تالا کاندی — هغه خپل مصاحبان
نام نشان نے هسے ورک شی — لکه عین بے نشان
نهٔ نے نقش پاتے کیږی — نهٔ نے اسم په جهان
دا دنیا آب روان دے — نهٔ شی نقش په آب روان
که هزار رنګ آبادی کا — نهایت خانه ویران
لکه باد هسے په تیر شی — هغه دور هغه دوران

دا بیان دور او دراز دے
کوتاه قطع کړهٔ رحمان
*۱۲۶* ۱۵*

---

که هر څو په صحرا سر شوم هم په کلیو
بیا مے نهٔ موند هیڅ خبر د هغو تللیو
خدائے زده کومه خوا ته لاړل هغویٔ څه شو
خبر نهٔ یم د کمر له [illegible] ریو تلیو
له دے غمه مے زرهٔ چوی که څوک خبر وی
لږ په ما هم خبر اوکړئی [illegible] اتلیو

پس له دے به چرته دروستی ځائے مو کوم دے
راته وایئ د دنیا په سرائے راغلیو
کوندے ستاسو په مخ زهٔ پسندیده شم
لاس د خدائے و در ته وو نیسئ پسندلیو
خبر نهٔ یم چه په باب مے کښلی څه دی؟
زهٔ رحمٰن په اندیښنو یم د دے ښکلیو

* ۱ * ۱۲۷ *

تور لیمه مے د فراق په ژړا سپین شو
دوباره د زړهٔ په وینو کښیے رنګین شو
ما وے زهٔ به لا دیدن کړم د یارانو
خبر نهٔ وړم چه یاران په کوچ تعین شو
چا پتنګ غوندے ځان واچوؤ و اور ته
څوک ژوندی لکه بلبل په آتشین شو
و مردو ته د مرګ خوارنے شوے پیښیے
او ژوندی په زندګئے کښیے اندوهګین شو
د قضا سپاهیانو هسے لاس په تاخت کړو
چه پائمال هزار خسرو هزار شیرین شو
چه قدم ئے په آسمان ایښود له نازه
هغه هسے ناز پرور زیر زمین شو
چه مدام ئے د سنجاب د پاسه خوب کړو
اوس په زمکه بے بستر او بے بالین شو
د رحمٰن خاطر به ولے پریشان نهٔ وی
چه پریشان ورسره جمع همنشین شو

* ۲ * ۱۲۸ *

تا چه رنګ د میئو ورکړو و لبانو ا
اور دِ پورے کړو په کوز د میخوارانو
چه دِ جوړه کړه لینده د کږو وروزو
څو به ښکار کړے په حرم د غزالانو
چه دِ اسم د زنځیر په زلفو کیښود
معطر دِ کړو دماغ د دیوانګانو
په رخسار چه دِ د خط غبار څرګند شو
سر بلنده شوه فرقه د خاکسارانو
کاږه غشی واړه بیرته ځی له نخښے
زه آزار کړم ستا کږو کږو مژګانو
چه زما د یار تر مینځه جدائی کا
کانړی پریوتے په خونه د بدانو
که مے چرے خواست د خدائے په در قبلیږی
سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو
سور پیزوان دِ په سرو شونډو هسے زیب کا
لکه جیم په قلم کښلے کاتبانو
د سرو ټیک دِ شهزاده په جبین پروت دے
شینکے خال دِ محاصل په بندیوانو
دواړه لیچے دِ وکښلی مصرئے تورے
در پوهیږم سر به پرے کړے د خوارانو
ستا له غمه په ځان زړه د رحمٰن سوزی
لکه شمع په زیارت د شهیدانو

* ۳ * ۱۲۹ *

چه کوتلی دی په تیغ ستا د چشمانو
سر حلقه دی د جمله وُ شهیدانو

ستا وصال د سر پرېکړو دے دلبره
ژوندی نهٔ مومی جنت سبے مردګانو

د پیری سورے عاقل لره ضرور دے
دا مقام دے د سرتورو دیوانګانو

په سرپوښ محل کښېږ نور د آفتاب نهٔ وی
دا دولت دے نازل شوے په ډاګیانو

هم په دا زما له سترګو وینې څاڅی
چه دِ نقش پکښې رنګ دے د لبانو

مشکین خال دِ په سرو لبو هسے زیب کا
لکه مهر په مخزن د دُرِ سرجانو

ما سیوی له یاره، هر چه وی رحمانه
واړه کفر دے په دین د عاشقانو

* ۱۳۰ * م *

هر ساعت زما د غوږ په تاوه ولو
د فنکے لاسونه شنهٔ شو تر څنګلو

عمره غم د بیلتانهٔ را پاندے راغے
چه حساب ئے نهٔ په خوله شی نهٔ په کښلو

هغه سترګے چه نرګس او هم بادام دی
تیرے تورے دی زما په قتلولو

هغه شونډے چه شیرینے دی تر قندو
ما هیڅ فیض ځنے بیا نهٔ موند بے کنځلو

دا کاږهٔ کاږهٔ بانړهٔ او کږے وورووزے
نور څه نهٔ کا بے کږو کږو وهلو

په شپه نوکے د عاشق په وینو سرے کا
صبا پورے کا تکریزے په منګلو

دا زما د قاتل لاس دے نهٔ پوهیږم
که تر باغ وتلے ښاخ دے د سرو ګلاو
دریغه مرګ ئے په دنیا کښے نیمه خوا شوے
ښائسته غنچے ئے پرے یستے د ګلاو
هسے بند شو په کمند د تورو زلفو
چه حیران شوم د رحمٰن په خلاصولو
*۵* ۱۳۱ *

---

هسے زهٔ یم یاره ستا په غم تازه
لکه وی هره ګیاه په نم تازه
سترګے اوخوږم که ئے اوچے کړم له نمه
که ے شی په دا ژړا صنم تازه
زهٔ به څه کړم د چا چارے بے له یاره
هر سړے دے په خپل ساه په دم تازه
د یار نوے نوے جور زیږوی وصل
ګرغوی سوے پرهر مرهم تازه
که دِ زړهٔ له غمه اوچوی دلګیر مهٔ شه
کاتبان کا په چول قلم تازه
ښائسته یاران ګلونه دی رحمانه
بیلتانهٔ کړهٔ اکثر مراوی کم تازه
* ۱ * ۱۳۲ *

بیا دِ مغ دے جار وتلے څه بلا شوه
دا بلا له کومه لوریه را پیدا شوه
زما په یار کښے مهر و وفا نشته
که دنیا واړه بے مهره بے وفا شوه

چه نے هیڅ له خدایه ترس او ویره نۀ شی
په نصیب مے یوه هسے دلربا شوه
چه نے حسن و ته گورم حیرانیږم
وا خرگنده یوه هسے تماشا شوه
څه د حد و د حساب خبره نۀ ده
بے صبری مے تر حسابه زیاته لا شوه
قرارے مے، په طلب کښے نے حرام شو
بے غمی مے په مذهب کښے ناروا شوه
چه راکښلی مے پرے غشی د دعا وو
هغه مخښه مے او نۀ ویشته خطا شوه
لکه پوچ بادام بے مغزه بے حاصله
هسے پوچه بے حاصله مے دعا شوه
عاشقی مے چه له خلقو په غلا کړه
هغه غلا مے په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسیه معاملے موموم
چه مے نغده په ورغوی کښے نسیا شوه
در د بیرته جار وتو شو راته پورے
په نصیب مے بله نۀ وه دا وه دا شوه
یوه بخره هر سری لره خدائے ور کا
زما بخره آشنائی د خپل آشنا شوه
د تدبیر په دام به څشکله کیوزی
معشوقه چه مے په مثل د عنقا شوه
چه نے زر کړو زیر رخسار زما د خاورو
عاشقی نۀ وه په باب زما کیمیا شوه
څه حکمت د یار په مینه کښے خدائے کیښود
چه عاشق لره هم درد شوه هم دوا شوه

دا باران نهٔ دے چه ووری له آسمانه
د مرغانو په رحمٰن باندے ژړا شوه

* ۲ * ۱۳۳ *

ډیر عمر مے تیر کړو بیهوده په زمانه
نور د زما سر وی او د ترکو آستانه
هیڅ مے حاصل نکړهٔ په شیخئی او په تقویٰ کښے
پس له دے مے وار دے هر چه شی په میخانه
شیخ و شیخئی، ورد و وظیفه او ذکر فکر
زهٔ او ساقی، جام و باده، چنګ و ترانه
زهٔ و زاهدانو ته حیران یم دوی و ما ته
دیوانه به دهٔ خندد، و دهٔ به دیوانه
ګنج د عقل زار شه د عاشق تر څاڅکی اوښکو
نهٔ خرواړ د عقل نهٔ د عشق یوه دانه
تیغ د یار له لاسه په مرئ د عاشقانو
هسے لذت کا لکه د میو پیمانه
خدائے لره به ورشم په سودا د یار له مخه
بل مقصود مے نشته په کعبه په بتخانه
زهٔ له ډیرے مینے په تش بوئی د یار شیدا یم
تل د لوندو ختو اوبهٔ لیږے وی بانه
څکه زاهد زهد کا د یو جنت د پاره
سر شیندلے نهٔ شی په اوربل د جانانه
کوره د منصور هسے په دار نهٔ شے رحمانه
مکره دا د عشق خبرے مستے رندانه
بل نام و نشان د عاشقئے نشته رحمانه
بے نام و نشان شه، که ئے غواړے نشانه

* ۳ * ۱۳۴ *

په حالت د عاشقانو نظر بویه
په زیارت د شهیدانو گذر بویه

بې مرشده څوک خبر د مرید آخلي
غوښ په غم د فرزندانو پدر بویه

بې ربیاره رسیدۀ و یارته گران دی
په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه

بې هنره چا دولت سوندلې نهٔ دې
په خدمت د صاحبانو هنر بویه

ستا له سترگو مې هرگوره ملاحظه شي
له دې هسې سیاه دلانو حذر بویه

بڼه چه سترگې خدائې ملالې کړې د ترکو
لیږ به زړهٔ د ظالمانو اثر بویه

ستا په یاد به هر یو زړهٔ مشرف نهٔ شي
دغه تاج د بزرگانو په سر بویه

چه خبر د رحمٰن نهٔ آخلي یار بد کا
بادشاهان له گدایانو خبر بویه .

* ۴ * ۱۳۵ *

---

مخ د یار شمس و قمر دریواره یو دی
قد او سرو صنوبر دریواره یو دی

حاجت نهٔ لرم په شهدو په شکرو
لب د یار شهد و شکر دریواره یو دی

که بې یاره د بستر د پاسه پروت یم
نار و خار و دا بستر دریواره یو دی

چه ئې دز او هم دیوار وته نظر کړم
باغ بوستان او دغه در دریواره یو دی

خدائې د یاد له هجره هیڅوک خبر مکړه
تاخت و قتل دا خبر دریواره یو دی

چه غبار ئې د کوڅې راپاندې راشي
دا غبار مشک و عنبر دریواره یو دی

هغه دم چه سرې درومي له جهانه
تورې خاورې سیم و زر دریواره یو دی

قلـندر چه په ربښتیا قلندری کا
خان، سلطان و قلندر دریواره یو دی

ور دِ نهٔ شی په پردیٔ زمکه هیڅوک
کور و کر او مبصر دریواره یو دی

چه دِ نهٔ په کښیے یو یار نهٔ دِ آشنا وی
هغه ښهر، بحر و بر دریواره یو دی

په دکان د نابینـاؤ جوهریـانو
خرمهره، لعل و گوهر دریواره یو دی

پسران دِ عار زما له عشقه نهٔ کا
پاک عاشق، پسر، پدر دریواره یو دی

په سبب د ظالمـانو حـاکمـانو
کور او اوز او پیښور دریواره یو دی

غزا اوشوه که خان ستانی و رحمٰن ته
بے هنر او گذاؤ خر دریواره یو دی

* ۱ * ۱۳٦ *

ستا له غمه مے په سخ بانده ولے دی
لو مے اوبوبنته له حاله چه ولے دی

زهٔ په تا پسے موسیٰ(ع) یم قارون نهٔ یم
چه مطلب مے غوا و غیلے یا گلے دی

هغه کوډے لکه تا دی په ما کړے
کله کړے په مجنون بانده لیلے دی

لکه ما چه مصلے درپسے لنگ کړے
کوم ملنگ هسے لنگ کړے مصلے دی

بوئی هم ستا د وفا نهٔ دے را آلوتے
ما په خپله خپلے کړے تسلے دی

که رحمٰن د عاشقئ په تیغ شهید شي
د جنت حورے همه واره دلے دي

* ۲ * ۱۳۷ *

ښخ مے ستا د ښرو غشي په سینه دي
پور راپورے مے وتلے تر اینه دي

تل ئے مخ د یار په مخ باندے وي اینبے
هغه زړونه چه بے ننګه آئینه دي

هسے نهٔ چه زهٔ نن ورځ په تا شیدا یم
ستا غمونه مے په زړهٔ کښے دیرینه دي

لکه ستوري چه بریښنا کا په آسمان کښے
په ټټر مے ستا داغونه نګینه دي

درته وایمه له آهٔ ئے پرهیز کړه
د هغو چه پوښاکونه پشمینه دي

که دا ستا رخسار سوزانے لنبے نهٔ وي
ولے کسي زما تور سوي نینه دي

څه به سم په صبحدم کوري و چا ته
چه ئے سترګے په مئے مستے شبینه دي

هغه سترګے چه پیدا کړے خدائے خونریزے
بے غضبه په غضب او په کینه دي

شرابیان چه شراب مومي خوښے شوي
کله منع په اختر په ادینه دي

چه تمام د خپل ځیګر په وینو رنګ شو
د رحمٰن خبرے ځکه رنګینه دي

* ۳ * ۱۳۸ *

سپین رخسار و مشکین خال یې سره ضم دی
یا محمود او ایاز ناست سره همدم دی
که د مخ په زلفو پټ شو باک یې نشته
د حیات اوبۀ هم پټې په تورتم دی
ستا له زلفو له رخساره له سرو شونډو
پیدا شوی شــام، شفق او صبحدم دی
په دهن کښې د غاښونه تجلي کا
یا غوټۍ په غنچه کښې د شبنم دی
نه چه اوس زما زړۀ غرق ستا په غمزه دے
چارۀ غوښې له قدیم سره په غم دی
بې ژړا چاته نۀ ګوری سیاه چشمه
د نرګسو غوړېدۀ د جوئ په نم دی
راحت نه دے چا موندلے بې زحمته
ستا جفا او وفا دواړه منقسم دی
ستا د حسن د تعریف له برکته
د رحمٰن د شعر کوکې په عالم دی
* ۱۳۹ * ۳ *

کاشکې زۀ خاورې ایرې د ستا د در وے
چه قدم د همیشه زما په سر وے
څو یو ځله زما ستا ویله مخ شوے
نور به مخه ستا د غشیو په تېر وے
تمام تن به د رنځور په ځیر اوره وے
څو به ما د تورو سترګو یو نظر وے
په زیړ رنګ په سپینو اوښکو به به بیاموند
که د ترګو ملاقات په سیم و زر وے

ملامت به په ما څه لره وایه شو
که دا ستا له دلبرئ نه څوک خبر وے
مرتبه که ستا ذ عشق شی ورڅرګنده
ملائک به واړه وائی چه بشر وے
تماشه به زما هله درښکاره وشے
که ته ما غونډے بیدل او زړه دابر وے
په خونبار به زما سترګو غونډے نهٔ وه
که په مخ نے د تیرو تورو پرهر وے
ستا په درد کښے طبیب وائی و رحمٰن ته
لا به ښه وه که د حال تر دا بتر وے

* ۱۳۰ * ح *

وخت د عیش و طرب تیر شو خزان راغے
څنګدن د ښبلانو په ځان راغے
دلداری مے تر امید وه بارے څه کرم
هغه یار د دلبرانو په شان راغے
سود سودا د عاشقئے که نفع مند وے
ما هیڅ سود په کښے بیانهٔسوند تاوان راغے
تمام عمر که وصال وو همره نهٔ وو!
لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغے
آشنائی هم په هوس ده خو چه بیل شوم
دواړه لاس مے وہله ومښو، اَرمان راغے
کوئی زما د زړهٔ ئے یو رو په چوګان کښے
بیا د ناز په نیلی سور په جولان راغے
غنچه لب به په خندا نهٔ کا پریشانه
په شیبو زما د اوښکو باران راغے

د میرزا د ارزانئی دعویٰ به پرے کا
قدردان د شاعرانو رحمٰن راغے

* ٦ * ۱۳۱ *

که د زړهٔ په وینو رنګ د چا ګوګل شی
چه بیلتون په جهان ګرځی خو به بیل شی

که د اوښکو په دریاب باندے نهال کړے
نیشکر به نیشکر شی نل به نل شی

مشقت د سړی واړه حبطه کا
په بیوره کښے چه د ګل بوټے نهل شی

د دنیا یاری دوستی څه پکار نهٔ ده
له اوله یار و دوست وی پسے نمل شی

که هر څو نے وبله مهر و محبت وی
نهایت سره په جنګ و په جدل شی

په مثال د دزوغژنے ملغلرے
آب و تاب نے په دوه ورځو کښے بدل شی

که نے زنه د ځوانئے په وخت کښے سیب وی
هغه سیب نے په پیریٔ کښے بیا حنظل شی

د رقیب له بده خویه به څه وایم
ترو دا ګوره چه لا یار ورسره مل شی

زهٔ رحمٰن په ښهٔ به بد د یار پوهیږم
کاشکے زهر په دهن د چا عسل شی

* ۷ * ۱۳۲ *

که دِ غم د درست جهان له زړهٔ چاپیر شی
دلګیر مهٔ شه همے وایه چه به تېر شی

غم هغه دے هر چه سیرمه وی و ځنیا ته
ورومبنی واره تر وروستیو پورے هیر شی
بے له خدایه چه مدام په یوه حال دے
بنده کله شیر شاهی او کله سیر شی
یو آدم دے چه په څو رنګه جلوه کا
یو رقم دے کله زوَر او کَاله زیر شی
د دنیا چارے مدام په قرار نهٔ وی
د بنړو په زنبول په بل بل پیر شی
په لږ عمر کښے ډیر غم له کومه راغے
خو له خپلے بے صبریٔ په سړی ډیر شی
خریدار فروشنده چه سره خوښ وی
په سودا کښے سخته نهٔ کا تیر و بیر شی
بنائسته په جهان ډیر دی بے حسابه
بارے څوک به د رحمٰن د یار په څیر شی
* ۸ * ۱۴۳ *

چا دا هسے لاس په لاس دنیا پرینبو دی
څه چوا چندفر په خلان پورے سنبودی
دا دنیا په مثال پل مرګ نے سیلاب دے
د سیلاب په مخکښے حه پولے ایښودی
جل زلمی لا وادهٔ نهٔ وی سره ګنډ شی
دارنګ چارے د مرګی په خر خښو دی
قافلے چه په دنیا کښے شوے داخلے
بیا هم هسے معلومیږی چه د لښو دی
دا سفر به په هغو باندے آسان وی
چه تر کوچ پخوا په زیرمه د توښو دی

چه بے وخته ارمان کا په وخت اوده وی
د هغو عالمو ویرے د وکړو دی

په هر شان چه یار خوښیږی زه هغه کرم
خپلول د صاحبانو په پیښو دی

د یار خم یے لکه تاج دے په سر ایښے
نور غمونه یے هغه لاندے تر پښو دی

معشوقے په عاشقانو خود پوهیږی
دلته څه د عاشقئے نخښے د ښو دی

میخوران که نے خبر شی له مستئے نه
د رحمٰن د میخانے شراب د ښو دی

* ۹ * ۱۴۴ *

د سکوت په تیغ چه ژبه بریده شی
لا قلم غوندے په قال کښے ذویده شی

همره اور د عاشقئے په زړګی یو سی
چه لاله ئے له تر بته دمیده شی

خم آبرو د یار یے نقش په لیمه دی
لکه سیاشت چه په لوئے بحر کښے لیدهٔ شی

همیشه ئے د خپل یار په لوری ذؤ دی
نهایت چه په دا ذؤ کښے رسیده شی

څه حاجت دے چه زه یار وچاته ستایم
کار همه د خپلو سترګو په دیده شی

کله وی چه بو د بل په وئیل غلیږی
مګر صافه د چا خپله عقیده شی

خود ځرګند وی لکه صبح په جهان کښے
هر ګریوان چه په یارئے کښے دریده شی

آبروئی د عاشق هلته خان څرګند کا
چه ئې نم د زړهٔ له سترګو چکیده شی

د آه غشے ئې په زړکه کله لګی
هر قامت چه کمان طوره خمیده شی

بے مطلوبه ئې هیڅ فهم په چا نهٔ وی
هر طالب چه په طلب کښې فهمیده شی

هر چه زړهٔ په مهرویانو باندے بائیلی
بے دیناره بے درمه خریده شی

سړے چه یار په څیر بل مخ نهٔ دے لیدلے
مګر هس چه له نن ورځے آفریده شی

یا به شهد یا به قند یا به نبات وی
هر کلام چه له رحمانه شنده شی

* ۱۰ * ۱۳۵ *

ډیرے خولے زما په یاد شکر خورے شوے
بیا زما په زمانه خاورے ایرے شوے

د چندنړو اوئے اوسولیدے لاړے
هزار څانګے د شمشادو په ارے شوے

په هغو زړکو چه روښے پرے مانړۍ وے
د ایام په ګردشونو ادیرے شوے

په دنیا کښې چه بنیاد د آشنائۍ کا
د هجران تورے هغه لره تیرے شوے

دا فلک خدائے پیدا کړے دائے خونی دے
چه و چا ته ئې دعا چاته ښیرے شوے

د دنیـا د محلونو خښتې واړه
و رحمٰن ته د سرونو منارے شوے
*۱۳۶* ۱۱*

تبسم مے د وګړی په روزګار شی
چه له مرګه ئے نهٔ ویره نهٔ ئے ډار شی
له دهٔ زیږی د دهٔ له وړاندے مړهٔ شی
لا ئے سینه د دنیا په کار و بار شی
که ئے هر قدم د مرو په سر لار وی
یو قدم هسے وا نهٔ خلی چه په لار شی
د ژوندیو نصیحت پرے اثر نهٔ کا
مګر مړهٔ له قبره پاسی په ګفتار شی
د امید مزے ئے هسے رنګ دراز وی
چه تر خضره (ع) ورته خپل عمر بسیار شی
سپینه ږیره په اورنری کنبیے ځوے را داخلی
چه به ما لره سپاهی یا منصبدار شی
د خرما زړے نهال کا، ورته ګوری
چه دا سورے دا میوه به مے پکار شی
هر هر فصل چه. ترے ربی هوسیږی
چه به ګوندے راته بل فصل تیار شی
لا ئے لپـه تخم هم کرلے نهٔ وی
نا کشـته ورځنے طمعـه د خروار شی
غروندے د تازیږیو سخیو غری
چه صبا بیګاه به ما لره ګوهر شی
لکه ورکی کتوری له زانړے غواړی
په دا هسے پوچ ګوینی ئے اعتبار سی

رنځهن څه دے چه په پند و چا ته وائی
هدایت د هر بند په کرد گار شی

* ۱۲ * ۱۰۲ *

د هغے بنا چه نوم محنت آباد وے
ترو خاطر به یه کښے څنګه د چا بناد وی

په خوارۀ او په څپو کله وینه نیسی
هر مارغه چه په قفس کښے د صیاد وی

د رنځور په خوله کښے کله مزه کاندی
که سل رنګه نعمتونه ئے معتاد وی

پاڅئ بستۆ لره هر چرته زندان وی
هغه هر چرته آزاد وی چه آزاد وی

عشق تغیر و تبدیل نۀ لری یکرنګ وی
د آشنا له لاسه داد وی که بیداد وی

د بنادئے نخښه هغه وی په جهان کښے
چه په یار پسے بے بیخ و بے بنیاد وی

بودنی هغه بالۀ شی په معنٰی کښے
چه دنیا ئے په نابوده اعتقاد وی

نقصانی دی د دنیا عمارتونه
که تر لاندے ئے سل ستنے د فولاد وی

زندګی که څوک پوهیږی حضور دم دے
آینده او رفته کله د چا یاد وی

دا دنیا لکه سیلاب هسے بهیږی
نۀ ئے چا څخه استوږنه نۀ استاد وی

چه کامله اراده لری په زړۀ کښے
د مرشد له اشارته بے ارشاد وی

و هغو ته چه خدائے بنود په خپله وبنود
څه حاجت ئے په بنودنه د استاد وی
دیر یاران ورځخه بیل شو هیڅ ګرم نهٔ دے
که رحمٰن له جدائیے نه په فریاد وی
* ۱۳ * ۱۴۸ *

چا چه نمری وی په خپلو وینو والی
د شبنم په څیر په تل وی سپین سپیخلی
که صیاد ځخه د اوښکو دانے نهٔ وی
د هوا مرغونه نهٔ دی چا نیولی
هر یو مخ کله لائق د آبروئے وی
اوښکے نهٔ دروی په مخ د هر ناوَلی
هره شپه به شمع څه لره ژړا کا
که ئے نهٔ وے په ژړا کښیے څه موندلی
ما رحمٰن به ژړا نهٔ کړه له خوبانو
که مے نهٔ وے په قسمت دا هسے کښلی
* ۱۴ * ۱۴۹ *

چه په مخ باندے د اوښکو یو رقم وی
عین د تورو له پرهره سره سم وی
که ګریوان مے د سپوږمئی د نمر مشرق شی
زهٔ چه یار په سترګو نهٔ وینم تورتم وی
دلته سر پورته کول د چا رسیږی
چه په خپله د یار زلفے خم درخم وی
ګیرو وروځو غوندے نیش وهلے نهٔ شی
که په زړهٔ د پاسه پروت د چا لړم وی
معشوقه چه د عاشق په غم وی غوڅه
د عاشق سترګے دِ ووځی چه بیغم وی
همدمی د دوو همدمو هسے بویه
چه د دواړو همدمی په یوهٔ دم وی

که د درست جهان بنادی ورباندے راشی
مکړه خدائے چه څوک بے یاره خوښ خرم وی
بل ستم د بیلتانهٔ د پاسه نیشــته
که لیدلے چا په سل رنګه ستم وی
دا قضا څه تر قاضی موقوفهٔ نهٔ ده
خود په خپله یار تر یاره پورے کرم وی
راحت هر چرے هغه لره لازم دے
چه په درد و په محنت کښیے مقدم وی
چه خوناب ئے د چشمانو مئے و ناب شی
پیوسته له دغه جامه سره جم وی
هیڅ حاجت د هنر نشته و رقیب ته
که په اصل کښیے عرب وی که عجم وی
هنر مهٔ غواړه طالع له خدایه غواړه
څه بکار بے سلیمانه (ع) که خاتم وی
د رحمٰن خندا په اجر د ژړا ده!
تازګی د ګل په قدر د شبنم وی

*۱۵*۱۵۰*

تل د ستا د خواب آلودو سترګو خواب وی
چه فتنه په خوب آوده شی ډیر ثواب وی
لکه مئے چه په مینا کښیے تجلی کا
نور د حسن په حجاب کښیے بے حجاب وی
تهٔ چه ماته لوابونے پښئے د صبر
ډیر زهٔ هم په دا راضی یم که مے تاب وی
زهٔ په دا سبب په ترګو هسے ژاړم
چه ژړا د عاشقانو د مخ آب وی

که نادان وی هم دا همره خو پوهیږے
ځوك چه نه ژاړی په یار پسے کذاب وی
د عاشق سترګے په دا سبب شوے پاکے
چه مدام په سر د جوئ لکه حباب وی
له خالی خوئے به څه ورے چه څه نه وی
که ختلے د حباب په سر سیلاب وی
هم په داۓ د نغمے اثر پیدا شو
چه په تشه ګیډه صبر د رباب وی
د حریص له خپله نقده بهره نشته
لکه مار د ګنج : پاسه پیچ و تاب وی
کاملان تعلقات د دنیا نه کا
لکه پاڼے د خزان پښه په رکاب وی
غفلت هیڅ مناسب نه دے په دنیا کښیے
ساکنان د دهر ټول واړه خراب وی
چه بنادی غواړے بیشماره بے حسابه
په رحمٰن به د غمونو څه حساب وی
* ۱۶ * ۱۵۱ *

چه تر سنګ و تر آهنه ئے زړهٔ سخت دے
زړهٔ هغه لره ورکړے ما کم بخت دے
خدایه کله به هغه غن راته ایل کړے
چه لوټلے ئے زما د خاطر رخت دے
همره غم به نور په هیچا باندے نهٔ وی
لکه غم چه د خپل یار په ما یک بخت دے
منکر بیل په تیره تیغ شی یار له یاره
ګنره ښاخ له بله ښاخ سره درخت دے

د پالنګ او د پیرۍ حاجت نه نشته
د یارانو نشستن د زړهٔ په تخت دے
چه له ډیره درده وخت پیژندے نهٔ شي
په رحمٰن باندے بے یاره هغه وخت دے
*۱۷*۱۵۲*

په ځوانئے کښے بد دماغه بد ګمان نه
چه پیرۍ دربانده راشي بیا ناتوان نه
که په دا دِ زړهٔ بنهٔ کیږي دا خو نشته
چه به هم تر ډیره ژوے هم به ځوان نه
چه هرګز دِ په لاس نهٔ وي کښیوتونی
بیهوده د هغو چارو په ارمان نه
چه بے خدایه زړهٔ ترے په نور څه بویږے
هم په خدائے هسے باور کړه چه نادان نه
پښیمانی تر پښیمانئے لا پخوا بویه
نهٔ هغه چه بیا په تیر ساعت پښیمان نه
هسے رنګ دِ و هغه جهان ته شا کړه
ګویا تل به مستقیم په دا جهان نه
همره سر دِ و خپل خدائے وته ټیټ نهٔ وي
لکه ټیټ په لور د خان او د سلطان نه
یوه شپه په طاعت نهٔ شي رونږولے
هره شپه په مال و ملک پسے پاسبان نه
په تسبیح دِ تانده ژبه وچ لرګے شي
پوچ ګوني لره بلبل غوندے ګوین نه
و نمانځه ته چه نمر خیزي هالهٔ پاسے
په قلبه پسے په نیمه شپه روان نه

اوداسه لره کوزه آخستے نه شے
چه په لژ او په لور ورشے پهلوان شے
پټے سترګے لکه سور په کنړے ګرځے
که خربوزے و ګوهی وته روان شے
د هلک په خیر به لاس آچوے اور ته
نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان شے
چه و بل ته نصیحت کا ځان شے هیر وی
نور څوک نه دے هغه ته عبدالرحمن شے

* ۱۸ * ۱۵۳ *

کمینی یو نادر کار دے — چه کمال څنے اظهار دے
چه اختیار شے کمینی کړه — په دانه کښې پټ خروار دے
چرګ په دوه پیسے حلال شی — باز په سل روپئے سردار دے
چه آسمان شو سرګردان شو — چه زمین شو بر قرار دے
نښتر ګوره سر کښنی کړ — انګور ګوره نګو نسار دے
ذره خوارد شوه آفتاب شوه — ابر خورب دے غبار دے
کوه بلند شو سیه سینګ شو — لعل وړوکے بزرګوار دے
لوئے آسمان توره تبئے شو — هلک نمر سره انوار دے
ووړ سړے ګوره رحمانه — چه لوے فیل دے باربردار دے

* ۱۹ * ۱۵۴ *

که مطلب و مدعی اد سړی خدائے دے — هر هر سړے د ژوندیو رهنمائے دے
مسافر که په رحلت کښې وبله محرکا — هر اواز شے خواب آلودلره درائے دے
که سړے و حقیقت وته نظر کا ا — ژوندی خلق واړه ناست د مړو په ځائے دے
داخو بخت دے څوک سپین او څوک تور کړه — کنړه عین لکه زاغ هسے همائے دے
لکه فرق چه د همائے او د زاغ نشته — هم دغه دلیل د شاه و د ګدائے دے

تنه نظر د کاریگرو په کار سه کړه — کار همه واړه موقوف په کار فرمائے دے
ساالکان چه دجهان تما شه کاندی — له جها نه ئے مطلب جهان آرائے دے
که څوک خپل دست و پائے او باسی له میانه — خدائے پخپله دےدستودستوپائے دے
په هغه جهان نیکی او بدی نشته — هر مطلب د طالبانو په دا سرائے دے

زهٔ رحمٰن یوازے نهٔ یم په دا کار کښے
همیشه د یار په یار پسے وائے دے
*۲۰*۱۵۵*

که ئے مهر و محبت که ئے عناد دے
ما د یار په یارئے کړے اعتماد دے
زهٔ او یار که په تن دوه په معنٰی یو بو
هزار خوئے واړه ښهر یو بغداد دے
هیڅ بیلترن زما د یار وېله نشته
کار همه واړه موقوف په خپل میعاد دے
هیڅ موقوف د معشوقے په حسن نهٔ وی
د عاشق خاطر په خپلے مینے ښاد دے
زهٔ خپل آه آتشین له خدایه غواړم
د آشنا خاطر که موم دے که فولاد دے
چه پریشان د یار د زلفو په څیر نهٔ وی
جمعیت د هغو زړونو لوئے فساد دے
چه د آه و د فریاد طاقت ئے نهٔ وی
هر سکوت د بے طاقتو آه فریاد دے
سل په دا رنگه نوښونو د عشق نور دے
لکه نوم چه د مجنون او د فرهاد دے
چه ئے زړهٔ شی هلته کښینی هلته پاسی
عشق د عقل و د هنر کره داماد دے

بادشاهان په عاشقئ کښې ملنګان شي
ما او تا غونډے وګړے د چا یاد دے

که ربښتیـا د خـرابئ سـره ګنج وی
خـرابات د بے بنیادو بیخ بنیاد دے

که کمال د کمینئ په اندازه وی
فوقیت د شاګردانو په استاد دے

چه دا نور شاعران کاندی هغه نهٔ کا
رحمٰن کړے نوے نوے اجتهاد دے

* ۱۵۶ * ۲۱ *

په خاطر باندے مے ستا د غم غبار دے
همیشه مے په زړهٔ پروت انبار انبار دے

رهبری که ګمراهـانو ته کړی خضر (ع)
عاشقانو لره خضر ستا ربیار دے

ګندِ چرے څوک د خدائے په در قبول وی
ستا له لاسه مے فریاد په هر دیار دے

د شهید و پرهرونو ته نظر کړه
همسے روان له دواړو سترګو مے خونبار دے

چه د غم په بارئے زړهٔ دے زما کښلے
هم هغه مے په زړهٔ کښلے په بار بار دے

چه هر دم مے د غمزو په تورو وژنی
لا مے زړهٔ د هغه سترګو منت بار دے

دا آسمان دِ د هغهٔ په مدعا وی
چه په ما باندے ئے کړے ستا اختیار دے

که یار سل ځله جفا ورسره کاندی
د رحمٰن دا هسې کله اعتبار دے

*۱۵۷*۲۲*

زړۀ مے ور کړو و خوډ راڼے | هر چه شو تکیه په خدائے
په سودا د عاشقئے کښے | یا به شاه شم یا ګدائے
یا به کښینم و دونبے ته | یا په سورے د همائے
چه خدائے که هغه به اوشی | نهٔ بل خدائے لرم نهٔ تمائے
بے دلبره به ور نهٔ کړم | بل هیڅ ته د زړۀ وائے
پائے بوسی به ئے پرے نهٔ ږدم | څو مے رسی دست و پائے
یا خندا ده په دنیا کښے | یا ژړا ده په وائے وائے
تر دا دوه چارے په څورته | نور څه نشته په دا سرائے
عاشق بویه چه صادق وی | نهٔ حود کام و نهٔ خوډ رائے
خدائے د نهٔ کا څوک په عشق کښے | جوَ فروش ګندم نمائے

زۀ رحمٰن په کار پوهیږم
که مے سل شی کار فرمائے

*۱۵۸*۲۳*

زلفے دِ له ډیرے درازئے پائے تر سر دی
یا د بنفشے لښتے خورے په صنوبر دی
لب دِ آب حیات دی یا شکرے یا نبات دی
یا خو زۀ غلط شوم تر همه وارو بهتر دی
قد ته دِ څوک نهٔ شی رسیدے له بلندئے
ولے چه معراج وته خاتهٔ د پیغمبر دی
ما چه ستا جانانت او نمر سپوږمئے سره په تول کړۀ
تللی په میزان کښے تر آسمانه سپوږمئے نمر دی

ځاڅکی له آسمانه په هر چا ووری یکسانه
پرخه په وابنهٔ شی په صدفو کښې ګوهر دی
بخت دے چه ئې څوک متمکن کړهٔ په تخت باندے
څوک د غم په خار سره پاره پاره ځیګر دی
باد چه دِ په زلفو باندے قصد د پریشانئې کا
ځکه ئې ګردونه د جهان واره په سر دی

هله به سرے شے چه دِ نوم عبدالرحمٰن شی
اوس سرے په څه ئې که دِ لوستی زیر و زوّر دی

*۲۳* ۱۵۹*

هسے رنګ نعمت را کړے خدائے و ما دے
چه هیڅ څیز ئې بها نشته، بے بها دے
یو خو دا چه ئې په شکل د آدم کړم
دویم دا چه محمد (ص) مے راهنما دے
لاس و پښے غوږ و سترګے خوله او ژبه
یو صورت مے په څو اسمه مسما دے
آسمان، زمکه، نمر، سپوږمئے او روښان ستوری
درست جهان مے و نظر ته تماشا دے
شپه او ورځ د ماه و مهر له پرتوه
مخ د زمکے راته درست نقره طلا دے
په شپه مشک په ورځ کافور راباندے ووری
درست صورت مے پکښے غرق سر تر پا دے
په هر دم زندګانی بخښی و ما ته
هر نسیم د یار له لوری مسیحا دے
د چمن و سرو ګلونو ته چه ګورم
هر هر ګل راته له وراپه په خندا دے

د گلگونو مېنو ناوے را ته ناسته
زنګاری قمیص اغوستے د مینا دے
خپلے وېنے په ورغوی کښېے نیولے
هر ساغر د مئے فروشو جان فدا دے
د بنهٔ رود په غاړه ناست سرود په لاس کښېے
هر مطرب لکه بابل هسے ګویا دے
سپین مخونه سرے لنبے دی د دلبرو
هر دیدن ئے د آفتاب په څیر رنړا دے
چه دا هسے معرفت ئے پرے پېرزو کړو
په رحمٰن باندے منت د پاک مولا دے
*۲۵*۱۶۰*

هغه زړهٔ چه ستا د عشق په اور کباب دے
که مرهم ورباندے کیږدے ډیر ثواب دے
حجابونه له اغیارو مناسب دی
د یارانو په یارانے کښې څه حجاب دے
بے له تا چه ښائسته وی بے حسابه
په هغو کښېے هم ستا حسن انتخاب دے
لکه ګل چه تر آفتاب پورے خجل وی
دغه هسے ستا تر مخ پورے آفتاب دے
دا د مېنو څه مستی او سرخی نهٔ ده
تیغ د سترګو ئے په وینو کښې غرقاب دے
زهٔ رحمٰن به څه جواب کومه یار ته
و ژوندیو ته د مړو څه جواب دے
*۲۶*۱۹۱*

نمر سپوږمئے کږه ستا له حسنه نهٔ شرمیږی
تر و دوئ ولے زرغونه او زیړ ښکاریږی

دا سپوږمئے چه نهٔ ئے سر شته نهٔ ئے پښے شته
په کوم حسن به له تا سره سمیږی

زرهٔ مے یوړو ستا د مخ په رنــړا زلفو
بارے غل په سپین صباح کله پټیږی

ستـــا د زلفو د آبرویو له وحشتــه
همــګی لـــړم ماران دی چه وریـــږی

مخ دِ اور خط دِ سبزه ده زهٔ حیران یم
چه سبزه په اور کښے څنګه زرغونیږی

اور اوبه سره چــا ګډ لیــدلی نهٔ دی
دا قدرت دے ستا په لبو کښے نمائیږی

لکه لوند زړوکے تاؤ کړی نوَ ئے اوځی
ستا له غمه مے رنګ زیړ پوست مے اوچیږی

سپوږمئے هم دا هسے تاؤ خوری ستا له مخه
چه په هره میاشت کښے دوه دوه نیمه کیږی

ستا قامت که څوک شمشاد بولی غلط دے
د لرګیو په نرخ سپین زر نهٔ یافتیږی

خم آبرو ئے په پناه د زلفو تم شو
د لړم لشه د مار سره تاویږی

و دندانو ته دِ دُر وئیلے نهٔ شم
کاڼری کله د بریښنا په دود ځلیږی

باریک خط ئے زلفو لاندے کړو رحمانه
سور چګان د شپے له مخه پائمالیږی

* ۲۷ * ۱۶۲ *

چه دارو د درد و غم دی هغه مئے
ساقی راکړه یو دوه جامه پیاپے
مئے د خپلو لبو را، نۀ د انګورو
چه اول ئے نوشیدن وی پسے قے
په هر تیغ کښے چه آب نۀ وی د شرابو
څوک د غم په غلیم نۀ موسی برے
جام د میو چه غمخوار د کل جهان شو
زۀ به اوسم په دا غم کښے تا بکے
واشه یو څله مے هسے مست خراب کړه
چه خبر نۀ شم له حاله د هیڅ شے
بیخودی هسے پناه ده زورآوره
چه له هره غمه خلاص کاندی سړے
زۀ هغه تحصیل تمام کړم په عشق کښے
چه ئے روغ وکړے بولی لیونے
رحمٰن صلح له رقیب سره په دا کا
آشنا به دے البته خوږونکے سپے

* ۲۸ * ۱۶۳ *

بد لوے په دنیا دین او ایمان ولے
نۀ پوهیږے په خپل سود او په زیان ولے
همیشه په ځانے د شکر، شکایت کړے
منکریږے په عطا د سبحان ولے
دربخښلے خدائے د هرے چارے توان دے
په ډیر توان کښے خپسر بولے ناتوان ولے
مدام اوښکے تویه وے د رزق له غمه
در ګوهر پر بها پلورے ارزان ولے

چه په هر بیګا سامان د هر صباح کړے
کور و کر شوے د محشر په سامان ولے
هیڅ ګیاه له ځایه نهٔ خوزی نم موسی
تهٔ د رزق په طلب ږې جهان ولے
چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړے
بیهوده په لوټو اولے آسمان ولے
په ژوند ومره چه د مرګ له غمه خلاص شے
اسان کار دِ کړو په ځان باندے ګران ولے
غیرے مینے دِ په ځان باندے انبار کړے
په کعبه کښیے ننه باسے بتان ولے
زړهٔ د نفس په پیروئے درځخه لاړ شو
د خبیث په لاس دِ ورکړو قرآن ولے
چه یوسف (ع) د حبشی په بها موسی
د مطلوب په بهاء نهٔ شندے ځان ونے
بد له بدو پښیمانی کاندی رحمانه!
تهٔ په خپلو بدو نهٔ شوے پښیمان ولے
*۲۹*۱٦۴*

کر د ګلو کړه چه سیمه دِ ګلزار شی
اغزی مه کره په پښو کښیے به دِ خار شی
تهٔ چه بل په غشو اولے هسے پوه شه
چه هم دا غشے به ستا په لور ګذار شی
کوهے به کنه د بل سری په لار کښیے
چرے ستا به د کوهی په غاړه لار شی
تهٔ چه هر چا ته په خوارو سترګو ګورے
لا رومبے به ستا صورت په خاورو خوار شی،

آدم زاد په معنیٰ واړه یو صورت دی
هر چه بل آزاره وی هغه آزار شی
که ته نهٔ کوے نظر د چا و عیب ته
هر سړے به ستا د عیبو پرده دار شی
دهقان کر په لوړه زمکه باندے نهٔ کا
سر کوزی کوه چه بنړ دِ مرغـزار شی
د بمات لوښی آواز کله ثابت خیژی
د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شی
نن چه صبح دے روښانه لار صحیح کړه
ناګهـانه به دا صبح شب تـار شی
لږ ئے مهٔ ګنړه که هر څو ګناه لږ وی
چه لږ لږ وبله جمع کړه بسیار شی
که بل نه کندی تهٔ نهٔ ورسره اوکړه
هر یو نخل چه میوه لری سنګسار شی
تل و ښو وته آزار د بدو رسی
هر چینجی و نرم چوب ته ور دوچار شی
هغه زړهٔ به له طوفانه په امان وی
چه کشتئے غوندے د خلقو بار بردار شی
خدائے دِ بد له لاسه نهٔ کا او که وی هم
د رحمٰن دِ له کل بدو استغفار شی
* ۳۰ * ۱۶۵ *

هر وګړے چه منصور غوندے په دار شی
دار ئے بس له مرګه نخل میوه دار شی
رنـغ صورت که روغ عالم لره کمال دے
لیونی لره کمال دے چه سنګسار شی

هر گیاه چه و کمال ته اورسیږی
سر ئے زمکے وته کوز وی نگونسار شی

نرے باد به ئے په خپل منزل داخل کا
که شوک پاتره د خزان غونډے تیار شی

غفلت هیڅ مناسب نهٔ دے د سړی ویرو
صبحدم که حیوانات وی هم بیدار شی

چه بو موتے اېرے ناز په آئینه کا
هم په دا خبره فخر د خاکسار شی

کریمانو سود موندلے دے په زیان کښے
لکه ښاخ د اونے اوتراشے باردار شی

خزانه په سخاوت سره زیاتیږی
د کوهی اوبهٔ چه اوکاږے بسیار شی

بېړۍ د اوبو گېدے مشکل نهٔ دی
مړه ول د اوبو ستر گو مشکل کار شی

کم خوراک سړے نزدے شی فرښتو ته
هر سړے چه بسیار خور شی بسیار خوار شی

صاف دلانو له لږ نصیحت بس دے
د گوهرو پیوستون په نری تار شی

غلبه د عشق بانه د حسن غواړی
توره شپه په عاشق زلفے د خپل یار شی

د توفیق له مخه هر مشکل آسان دے
و ستی وته د اور لمبے گلزار شی

ناز د عشق پرورش مومی له عشقه
هسے نهٔ چه د خوبانو په سنگار شی

بے محنته چا راحت موندلے نهٔ دے
د وصال خوښی د هجر په مقدار شی

عاشقانو لره واړه سعادت دے
که ئے سر وسال د یار تر نامے زار شی

یاره! یاره! هر څوک وائی په جهان کښے
زۀ به پس له مرګه وایم چه یار یار شی

لکه دار کاندی ورغوسی له ګرګانو
هسے رنګ له جدائے نه زما دار شی

د رحمٰن دا پوچ ګوئی څه په کار نهٔ ده
عاشقی په ګفتار نهٔ ده په کردار شی

*۳۱ * ۱۶۶*

چه مجنون ګرځوندے بو موتیے استخوان شی
په قوت د عاشقئے به پهلوان شی

عاشقانو په شکست کښے بریے بیا موند
داپه تړون د هندهٔ رسی به ناتوان شی

زیړے رنګ د عاشق هسے مرتبه ده
چه آفتاب غوندے څرګند په درست جهان شی

له چشمانو ئے باران د رحمت ووری
زرغونه ئے په څهره باندے زعفران شی

له رخساره حال د زړونو معلومیږی
له بهاره نیک و بد د کال عیان شی

له نکتیے نه تمام علم حاصلیږی
درست خروار له پوۀ مشته نمایان شی

پکار نهٔ دی مخالف هزار تقریره
موافق له حاله نیم کلام دا شان شی

نکه سر له کاروباره وی وتلی
د هغو خاورے په سر چه غافلان شی

که د دیر عمر په کار دے غفلت مه کړه
په اوده بانده سل کاله یو زمان شی
د غفلت بنیاد د اوښکو په موج خیژی
یو ځڅوبکے خوب آلود لره طوفان شی
روند په خپلے عصا پریوځی و کوهی ته
خپل دلیل د کم دلیل د ځان تاوان شی
سرکښی د عاجزانو په کار نه ده
هر میږے چه وزر اوکاندی پښیمان شی
موم دلان به ئے له شره لمن ژغوری
سنګ دلان که عین لعل د بدخشان شی
چه کیمیا د قناعت ئے په لاس کیوزی
د شړئ په خرقه کښے بادشاهان شی
بل پوشاک ئے پکار نه وی بے نمازه
هغه زړه چه آئینه غوندے روښان شی
عاشقی ده تر جمله بلا ؤ زیاته
و مجنون وته دیو د د واړه حیران شی
کاتبان به ور که در د خپلو غوږو
که ئے تیر تر غوږو شعر د رحمان شی
* ۳۲ * ۱۶۷ *

په نور ځه پسے بے خدایه ژاړے ولے؟
د چارپائے په ځیر بے ځایه ناړے ولے؟
چه روتئے میده کوے په شخوند خو جور ئے
ترو خبرے کوے لواړے لواړے ولے؟
ته دا خپل کلام میده په دا خپل شخوند کړه
تا داړلو ته تیرے کړے داړے ولے؟

هغه کار چه دِ په نرم وئیل کیږی
بیهوده په بیرته آولے لاړے ولے؟
نیک له نیکو، بد له بدو مناسب دی
نیک و بد سره په بله نغاړے ولے؟
یو قدم د خدائے په لور ابنبودے نهٔ شے
تمامی عمر په پراته لاړے ولے؟
تل دِ طوق د تعلق په غاړه کښیوست
وکښے نهٔ شے دغه طوق له غاړے ولے؟
چه په ورځ د شیخئے لافے کړے رحمانه
په شپه مئے له مئے فروشو غواړے ولے؟
* ۱۶۸ * ۳۳ *

که د سرو زرو سرے شی خو چه مړ شی
نه ئے نوم په خوله شوځد اخلی نهٔ یوبس تی
که هیڅا بر کړے نهٔ وی په جهان کښے
و اجل ته لکه خر په ختته پړ شی
راشه راشه دا دېر ناز او کبر مهٔ کړه
یاره څو به دِ دا ناز په جهان ور شی
دا رخسار چه دِ روښان تر آئینے دے
عاقبت به د لحد په خاورو خړ شی
مراد خو واړه دلبری ده غزا اوشوه
که د سروے به څیر څوک به قیامت لوړ شی
عاشقـان چه پښیمانیږی هغه نهٔ کا
هغه څوک د بے هنر وی چه خپر شی
نیکنـامی له نیکخوئے نه پیدا کیږی
دغه چاره نهٔ په څوک نهٔ په لوړ شی

دا خو زۀ له مشقته تا ته وايم
ګنړه ځان له سر نوشته په چا زغړ شي
د هوا په نفوته مه ځه که دانا ئې
د هوا وېشتلې غشې زر په زوړ شي
وران به نهٔ کاندي يو حرف د خپلې بخرې
که په اوبڼکو د چا درست جهان چقړ شي
په تدبير به د تقدير کښلي نور نهٔ کړې
د قسمت علاج په عقل کله کړ شي
په رحمٰن باندې بې ياره صبر ګران دې
لکه زهر چه ديده دانسته نغړ شي

*۳۳*۱۹۹*

صبحدم چه هغه يار راپاندې راشي
عجب نمر د نمر د پاسه هويدا شي
ښکلې مخ لره حاجت د سنګار نشته
بې ترتيب چه نمر وخيژي رنړا شي
چه ئې او وينم نه ورايه پورې نښلم
لکه پيښ چه وبله کاه و کهربا شي
ما له ډېرې ناچارئې و يار ته شا کړه
نارو . د ضرورت په ځائې روا شي
زۀ په وصل کښې خواري د هجران ژارم
د هر کار فکر تر کاره لا پخوا شي
لا پخوا تر جدائې نه ژړا بويه
ګنړه هلته هر يو ژاړي چه جدا شي
وصال نهٔ دې چا په سر او مال موندلې
مګر غاره په دا کار د چا ادا شي

زۀ به سر او مال د یار د نامے زار کړم
دا په عشق کښے سهل کار دے که په دا شی
د رحمٰن په اوښکو هسے رنګ پوهیږم
چه آخر به په تمام جهان رسوا شی
* ۳۵ * ۱۷۰ *
ګه سل ځله هم کنار و هم بغل شی
د دنیا په مینه واړه سره بیل شی
دا چه اوس په یوۀ کور کښے سره ناست دی
عاقبت به ئے جدا جدا منزل شی
دا ګلونه چه ئے ځائے دے په دستار کښے
همه واړه به تر پښو لاندے غوبل شی
دا پی مخی چه ئے مخ د نمر په څیر دے
تور وېښتهٔ به ئے په مخ باندے څنګل شی
دا شیرین شیرین شربت چه د وصال دے
د هجران په وخت به زهر هلاهل شی
ما د یار په بیلتانهٔ کښے دے لیدلے
که دانا د زمانے وی مبدل شی
پښه له ویرے د وصال په زنګه نهٔ پردی
چه خبر د جدایئے په ډل ډل شی
د دے هسے رنځ علاج به څوک په څه کا
چه نهٔ فهم د چا رسی نه اټکل شی
که د غرونو په سر ګرځی سر ئے تیټ شی
هر چه زړهٔ ئے د خوبانو په یرغل شی
د رحمٰن خاطر غمونو هسے رنګ کړو
مګر جام د مئے و ناب وی چه صیقل شی
* ۳۶ * ۱۷۱ *

چه شهـــید د تورو زلفو په خنجر شی
خوشنودی ئے د سرو شونډو په کوثر شی

چه را یاد ئې سپین رخسار دراز مژګان کړم
هغه دم مې زړهٔ سپند سینه مجمر شی

عندلیب خاطر مې آلوزی په ګلو
که د ترکو سنبل زلفې ئے شهپر شی

که یار سل ځله جفـا راسره کاندی
زما ګله په جفا د یار باور شی

د ناصح په نصیحت به منع نهٔ شم
که هزار ځله مې رور ا‌ ‌برادر شی

د رقیب او زمـا صلح سره نشته
که مو چرې لاس و دست وبله بر شی

صبوری او قـراری له ما خطا دی
تر هغـه ساعتــه پورې چه محشر شی

تیر ساعت به د هیچا په لاس کښینوزی
مګر تللې اشنـا بیا په اشنا ورشی

خوبرویان به د سپوږمئې توکره راواخلی
که رحمٰن کچکول په لاس کښې قلندر شی

* ۳۷ * ۱۷۲ *

چه غبار د ستا د لارې په خرا ورشی
که په دوارو سترګو ړوند وی مبصر شی

تازه نوې سر پیدا کـړی لکه شمع
چه ئے غوځ د چا په مینه د زړهٔ سر شی

چه کیمیا د قناعت ئے په لاس کښیوزی
که ګدا وی د قارون په شهر توانګر شی

ستا د در گدایان واړه بادشاهان وی
خو چه ستا له دره وشړی در په دربدر شی
تل ئے مخ وی جار وتلے له عالمه
د هغو چه ستا په مخ باندے نظر شی
که د درست جهان له حاله خبردار وی
چه تا اووینی له واړو نا خبر شی
آئینه که د جمال کړے وړخر گنده
دا گدا رحمان به شاهِ سکندر شی

*۳۸*۱۷۳*

په سړے له بڼه بد وانی بد گوئ شی
لا تر بله خوا روان د دهٔ بد بوئ شی
مرده شوئ چه هوس کا د بل و مرگ ته
بل هم پس د دهٔ له مرگه مرده شوئ شی
دوست دښمن د سړی واړه خپل عمل دے
هم په دا مقدار ئے اجر مزئ په موئ شی
هره اونه چه کږه په یوهٔ لوز وی
عاقبت ئے ړیواتهٔ په هغه شوئ شی
په لوښی کښے نور څه نشته بے زواله
هلکان د هلکتوب په سبب پوئ شی
د اوبو اصل له خاورو پیدا کیږی
خاکساری د خاکسارانو په آبروئ شی
همره زیان له څوکه خرسه نهٔ رسیږی
لکه څوک په آدمیانو کښے بد خوئ شی
سړی هوښ چه د سړی له تنه پاسی
د سړو په جامه کښے خرښوئ شی

و هغو وته چه خدائے په خپله اوښود
څه حاجت نے د رحمٰن په ګفتګوئ شی
*۲۹*۱۷۴*

ستا له غمه مے په سر کښے هسے شور دے
ګویا میشت مے په سر شهر د لاهور دے
په افسون او په جادو د تورو سترګو
خراب زړهٔ مے له جمله عالمه تور دے
که مے زړهٔ له غمه اوچوی راته وائی
غم د هجر دغه مهٔ ګنړه لا نور دے
د هجران په بیمارئے کښے را معلوم شو
چه آغستے مِر آزار د پلار و مور دے
دا دنیا په مثال کور دے د غمونو
چه په هسے کور نازیږی هغه کور دے
دا جهان نهٔ د چا خپل دے نهٔ به خپل شی
چا په خپله رضا پرینښود چا په زور دے
چه د مرګ په پوره وړیو شوک وسری
دے د وارو پورو وریو خوئے او رور دے
که رحمٰن، به عاشقئے ملامت کیږم
ما په سترګو قبول کړے دا پیغور دے
*۳۰*۱۷۵*

زړهٔ مے ستا په فکر ذکر ګلستان دے
تن مے ستا له غمه پاڼره د خزان دے
ستا له هجره په غم هسے بهره مند یم
چه په سترګو کښیر مے جوړ رودِ روان دے

ستا کتو ہے عجب زخم په زړهٔ اوکړو
چه هم وینے ترے بهیږی هم خندان دے
هسے رنګ ہے د خپل زړهٔ له وینو واخست
چه ځان درست راته په شکل د جانان دے
که د ستــا د زلفـو مار کاندی خونونه
ما سوندلے ځنیے عمـر جـاودان دے
ځنکدن که هر څو تلخ او تریخ وایهٔ شی
ستــا د لبو په مدد آب حیوان دے
آشنــائی تر جـدایئے کمزوری نهٔ ده
معطر په بوئ د ..عمر، درست کنعان دے
لکه نمر په ځلورم آسمان لیـدهٔ شی
محبت په سل حجـابه کښے عیـان دے
نور د شمعے په فانوس کله پټیږی
عشق د عقل په پرده کښے نمایان دے
که دِ ستا په مخ کښے بوئ د حجاب نشته
زهٔ له ډیرے ځلے وایم چه نهان دے
طاوس رنګ زلفے دِ چا هسے ګره کړے
چه هر موئے په څو رنګه په څو شان دے
بے پرڼے به حسن نهٔ وی چا لیدلے
که څوک وائی چه لیدهٔ شی تش ګمان دے
ښادی غم غونډے آسانه مونده نهٔ شی
سور په خپلو وینو لعل د بدخشان دے
که وصال په هر زمان وی هسے دریغه
لکه غم چه د هجران په هر زمان دے
بے د ستــا له ملاقاته چه مشکل شو
نور مشکل واړه په ما باندے آسان دے

هم په دا راته آسان شو نور غمونه
چه ستا غم راته د حد په هورته گران دے
یو نفس به دِ له دره پیرته نهٔ شم
څو مے یو نفس باقی په دا جهان دے
قافله د صبر هیڅ ویساه پرے نهٔ کا
ستا له غمه مے منزل د زړهٔ ویران دے
لکه سر و سامان ستا د زلفو نشته
همے زړهٔ زما ـ سر و بے سامان دے
لکه تا چه تور گیسو په مخ پریشان کړو
زما همے خراب زړهٔ یسے پریشان دے
خوار خاطر به د رحمٰن سلامت څو وی
چه گذر ئے ستا په چاهِ زنخدان دے

* ۷۶ : ۳۱ *

که د خلقو و نظر ته آدمے دے
خوار عاشق د معشوقے د کوڅے سپے دے
هرچه څان د یار په سپیو کښے حساب کا
ترو هالهٔ به ورته وایم چه سړے دے
ما دِ خدائے د یار له غمه بے غم نهٔ کا
دا په ملک د عاشقۍ کښے لوئے ورانے دے
زهٔ د یار په غم کښے زیره څیره خوښیږم
دا زما خزان، خزان نهٔ دے سپرلے دے
زهٔ ژوندون د یار و وصل وته وایم
گنړه عمر یو دوزخی په ژوند ژوندے دے
تهٔ چه ما منع کوے د یار له دره
کوم یو در د یار له دره بریالے دے
زهٔ د یار سینے په یار بانندے شیدا کړم
که څوک ساکښېری زهٔ نهٔ یم وارهٔ دیدے
چه وحشی مجنون ئے بنهر لره راوست
د لیلی د زلفو همے غروندے دے
زرداران که اوبهٔ څښی په جام د زرو
زما خوښ دا خپل د خاورو کندولے دے
اورنگزیب که د ډیلی په تخت نازیږی
خپله خونه هر گدائے لره ډیلے دے
چه له خپله کوره اوځی مسافر شی
څوک ئے پیژنی ساهو دے که سړے دے
چه ئے خاورے شی له خاورو سره گډے
ترو د چا زده چه د کوم نیکهٔ نسے دے

توره شپه په آشنایانو رنړا ورځ ده — رنړا ورځ په نا آشناؤ تر ږمے دے
نۀ دی ستر کے بوزه غوږ د کم شناختو — په معنیٰ کښے یو دیوال سورے سوریدے
عاشقان ئے د دنیا له غمه خلاص کړۀ — عاشقی د سلیمان بادشاه غمے دے
هر چه حب د عاشقئے لری په زړۀ کښے — که په قطع صد ساله وی هم زلمے دے
دا هلال دے چه لیدے شی په شفق کښے — که په لاس د گل اندامے سپین وښے دے
نا آشنا به بهره څرنګ ځنے موسی — چه مدام ئے په آشنا پسے غوږے دے
څربه وے سے قربانئے لره، پوهیږم — دا چه کړے دِ په ما باندے زړۀ سویدے
چه په نوم باندے بالۀ شی لیدۀ نۀ شی — معلومیږی چه نرحور یا بنا پیرے دے
چه د خط په دود ئے خلق پکښے پریوزی — زنخدان ئے تر سبزے لاندے کوهے دے

زۀ رحمٰن له یاره خوښ یم که جفا کا
که جفا نۀ کا وفا کا څو تیرے دے

*۱۷۷*۳۲*

که له ډیره غمه دم د چا ختے — زۀ به مړ ومه په عشق کښے لرغونے
زړه مے هسے ستا په تورو زلفو بائیلود — لکه ورک کړی څوک په توره شپه کالے
په یوۀ ساعت مے رد هم مے قبول کا — نۀ پوهیږم چه ئے څپل یم که پردے
په یولاس کښے ئے خنجر بل کښے مرهم دے — نۀ په مړو کښے حساب یم نۀ ژوندے
که په مرګ د عاشقانو ئے رضا ده — خدائے دِ ما کړه تر همه وارو رومبے
خون بها مے د ستی په مثل نشته — ما په څپله قبول کړیدے دا سوے
څوک دِ غم زما په ډیرو اوښکو نۀ خوری — کم به نۀ کا په خوردن سره ندے
د هجران په توره شپه کښے ئے ویریږم — چه ئے نۀ وینم د وصل سپین سپوږمے
د یار غم لکه زمرے راباندے را شی — خدائے دِ پیښ نۀ کا په چا باندے زمرے
چه پرے غم غلطه ؤم د شپے پاڅمه — کله مئے په شونډو کیږدم کله نے
کاه کتاب کله رباب په لاس کښے واخلم — بارے درد مے په هیڅ رنګ نۀ کا کمے
همسایه مے واره آوتل له خوبه — که په سل کوټو دننه کړم زوېرګے
نه عاشق تر معشوقو پورے پوهیږی دے — خدائے د هجر په تیغ سۀ وژ نه پوهیږے

زۀ رحمٰن د ہار پہ غم کښېے ھسے ډوب یم
چہ ھیڅ نہ وینم پہ سترګو، مګر دے

* ۴۳ * ۱۷۸ *

پہ دنیا کښے کہ څہ کار دے خود دین دے
د دے کار پہ کننده وُ آفرین دے

چہ تقویٰ او دیانت نے شی پہ بخرہ
د ھغو د سعادت ستورے قرین دے

قناعت یے ھسے خوند پہ خولۀ کښے کیښود
چہ وچ توک یے پہ دهن کښے انګبین دے

بے ھاتیانو بے اوښانو بادشاھی کا
د زاړۀ پوزی ټکور کے نے قالین دے

چہ پہ خواست د حاجت پورته کا لاسونه
د آسمان د ملائیکو پرے آمین دے

چہ قبوله کهتری کا پہ دنیا کښے
د ھغو پہ بهترے باندے یقین دے

تل د لوړے اوبۀ دروسی و ژور تہ
حقتعالٰی کمال ور کړے و کمین دے

خاکساری د خاکسارانو مرتبه ده
کہ زروکی نے خیرن وی زرۀ نے سپین دے

د سرکښو سر کہ ورشی تر اسمانه
پہ دوه ورځے پس نے ځائے زیر زمین دے

کہ ښیوه نے وی پہ سرکښے او لوئی کا
د رحمت لیاقت نۂ لری لعین دے

کہ صورت نے د سړی، سړے بالفشی
پہ معنٰی کښے سړے نۀ دے شیاطین دے

کہ رحمٰن څخه متاع د دنیا نشته
شکر دا چہ نۀ خودرایہ نہ خود بین دے

* ۴۴ * ۱۷۹ *

چہ دا څنګه یے دلبر پہ لاس کښے جام دے
نن اورنګ د زمانے زما غلام دے

مدام کله وی دنیا د دنیا دارو
بل له عشقه چہ دولت نے مستدام دے

د ھارون څرخ ہائے نیلے دے د سپهر
څو پہ دۀ کا چہ نے دۀ پہ سر د بام دے

د دنیا چارے په مثل دی د سوری
د آفتاب په مخ د سوری څه مقام دے
که نے صبح ښائسته دے خنده رویه
بیا ئے هسے په هر صبح پسے شام دے
نهٔ په مهر کښے آرام شته نهٔ په ماه کښے
په دنیا راغلے هر یو بے آرام دے
یغمی په دنیا جرے ده زړهماته
یو یغم دِ څوک را اوښیٔ کدام دے
* ۱۸۰ * ۵م *

زهٔ بلبل ستا د وصال یم بوستان څه دے
ستا د وصل په نسبت گلستان څه دے
چه أشنا شی ستا له دره له دیواره
انتظار ئے په روضه د رضوان څه دے
چه روزی ئے شهادت شی ستا له تیغه
احتیاج ئے په چشمه د حیوان څه دے
چه مسکن ئے د زړهٔ ستا د زنفو خم شی
و هغو ته د عطارو دوکان څه دے
و الهوس که له تا غواړی بوسه څه شو
هر رنگ هر رنگ وئیل کاندی نادان څه دے
هر چه لاندے خپل وجود تر خپل قدم کا
عرش ئے لاندے تر قدم شی آسمان څه دے
هٔ چه ستا له غمه ژارم آه فریاد کرم
برق و رعد چه کاره دی، باران څه دے
مان جهان یے هسے ستا په مینه هیر دے
نهٔ پوهیږم چه ځان څه دے جهان څه دے

تهٔ چه نهٔ کورې وماته لېږ مې پوه کړه
په دې کار کښې دِ ضرر او نقصان څه دې
زهٔ بې صبره يم که مهر د ستا نشته
له دې دوارو دِ په زړهٔ کښې گمان څه دې
که ستا سترگې دي قاتلې زهٔ مقتول يم
وايه نور دِ په خاطر کښې ارمان څه دې
چه مې وينې، ترو مې څه پوښتې له حاله
له عيانه احتياج د بيان څه دې
هر چه واڼې ستا رسې د رحمٰن غاړه
و توانا وته حجت د ناتوان څه دې
* ۳٦ * ۱۸۱ *

يو يو داغ په تهر اينبې د هر چا دے!
که پادشاه د ولايت دے که گدا دے
سيرابي په سر چشمه د دنيا نشته
تشنه لب ئې کوښې کوښې په غوغا دے
لږ راحت په ډير زحمت سره موندهٔ شي
د دې دهر خس حرام دے که ويريا دے
د دنيا ښادي بې غمه موندے نهٔ شي
لږ خيرات د شوم له کوره په بلا دے
فراغت پرے پاندے ولے حرام نهٔ وي
چه داخل په سراچه د دے دنيا دے
د مجنون د حال پوښتنه به څوک څه کا
جهان واړه کورا کور مجنون ليلا دے
عشق يو هسې رنگ افسون په عالم ُهو کړو
چه عاشق په تورو سترگو نابينا دے

هر چا ئې بخرې ورکړې ګوښې ګوښې
خپل قسمت د عزت سړی جدا جدا دے

ورکول راپیرودل د بل په لاس ندی
هلته دخل نه د ستا دے نه زما دے

په هر څه چه د صاحب د زړه رضا شي
په بنده که ناروا وی هم روا دے

خواه نا خواه که ئې رضا وی او که نه وی
د قسمت رسد رضا او نا رضا دے

څان جهان سپارلے بویه و هغه ته
چه ئې حکم جاری شوی په هر چا دے

د هر چا په لاس چه حکم حاکم ورکړی
جهان واړه د هغو په مدعا دے

چه مولا ورسره مل نه وی رحمانه
که لښکرې ورسره وی یک تنها دے

* ۳۷ * ۱۸۲ *

ما دے ستا لمن ته، اچولے دا خپل څان دے
ستا دے، زما نه دے که دانا دے که نادان دے

خپله سرکښی لوئی مې واړه فراموش شوه
هسې مې زړه ستا و لوئے قامت وته حیران دے

بې له تا که میل د ګلستان کړم که د ګلو
نه پوهیږم هیڅ چه ګلستان دے که زندان دے

چا پیژندم زه، چه عاشق نه وم په جهان کښې
اوس مې ستا له رویه نوم رسوا په درست جهان دے

نهیر همزولی تیر شو د مجنون بې نام و نقش
عشق دے چه عاشق لره هم نام او هم نشان دے

لوئے تر کوم چنجی دے پروانه، چه افسانه شو
واره په سبب د عاشقئے دے نمایان دے
واره د خپل ځان په نظر ګوره که دانا ئے
اے عبدالرحمانه درست عالم عبدالرحمان دے

* ۳۸ * ۱۸۳ *

ستا له لاسه په ما جور دے او که داد دے
زما مراد خو واره ستا د زړهٔ مراد دے
ستا په مینه کښے زما له سخه تښتی
که آفت دے، که آسیب دے، که فساد دے
هر اضداد چه راکؤ شی ستا په مینه
په لیمه زما قبول هغه اضداد دے
که تمام جهان مے پریوزی په لیمه کښے
بے تا نهٔ راځرګندیږی نهٔ مے یاد دے
ما چه غوږ دا ستا د عشق په ترانه کړو
نصیحت مے نور د زړهٔ په غوږو باد دے
اوس زما د ننګ و نامه سره څه دی
چه دِ نوم د عاشقئے رابانده ورباد دے
هر ګلشن چه له ګلرخه بے بهره وی
د عاشق په نظر غولے د صیاد دے
د رحمٰن و توان ته ګوره هسره ناز کړه
چه د اوسپنو روغ نهٔ دے آدم زاد دے

* ۳۹ * ۱۸۴ *

په ظاهر صورت چه ستا ... ګدائی دے
په معنی کښې د جمله ؤ کد خدائی دے

مجنون ید غوندے رونق د ګلستان شی
چه ئے ستا له غمه سر په پښت پرئی دے

چه له غمه د جرس غوندے نالان دے
د جمله ؤ ګمرهانو راهنمائی دے

چه څوك زړه د ستا د تورو ستر ګو کور کا
ستا د وروځو تورو محراب د لاندې ځائی دے

چه مسکن ئے د زړه ستا د زلفو خم شی
د شفو ناستې په سوری د همائی دے

چه تا ووینی وما ته نصیحت کا
شک پرے مکوه بیشکه چه خود رائی دے

که زردار دی آشنایان د زرداړانو
د رحمٰن د آشنایانو تکیه خدائی دے

* ح۰ * ۱۸۵ *

په د نیا کښې که هر څو ونله پیوند وی
پس له مرګه به ئے دوست صورت بند بند وی

زه به وخورم په دا باب هزار قسمه
که باور دِ په قسم او په سوګند وی

یا به وراندے له تا دروسی یا به ورستو
که دِ رور که دِ عزیز که دِ فرزند وی

زمانه به ئے تر پښو لاندے پائیمال کا
که په قطع تر آسمان پورے بلند وی

هم ئے هسے پیمانه ګنړه په خاورو
که ئے ډکه خوله تمام عمر په قند وی

هر چه کاندی آزادی په دا جهان کښې
پس له مرګه به همه واره په بند وی

هر چه غاړه ئے و حق ته اینبے نه وی
همیشه به ئے په غاړه کښې کمند وی

دا چه زه و تاته وایمه که خدائے کا
په آیات او په حدیث کښې به څرګند دی

ته چه نهٔ کوے باور په آیتـونو
ترو زما وئیل به څه درلره پند وی
نا پسند به د منکر .په انکار نهٔ شی
هر کلام چه دلپذیر او دلپسند وی

خدایه گنج د قناعت و رحمٰن ورکړے
چه بے ملکهٔ بے حشمته دولتمند وی

*۵۱ * ۱۸٦*

که دا ستا د خاطر مینه په اغیار زی
ستا د پاره د اغیار هم زما یار وی
هر سړے چه په یو مخ باندے میئن وی
له یوهٔ مخه ئے سل مخه پکار وی
هر چه کاندی نوکری د پادشاهانو
خواه مخواه به د دربانو منتبار وی
زهٔ به ستا له رقیبانو څه مانه کړم
دا دستور دے چه له گله سره خار وی
څو سل خاره ئے بنخ نهٔ شی په تنتر کښیے
گله وی چه د بلبل و گل ته لار وی
سجاده به د ساقی د لارے فرش کا
هر صوفی چه د سرو سترگو خریدار وی
په جذبه د عاشقئے به لیونے شی
که په قطع افلاطون غوندے هوښیار وی

په رحمٰن باندے به هیڅ ملامت نهٔ کا
هر سړے چه ستا له مخه خبردار وی

* ... * ۱۸۷*

که د دروستے دنیا غم بے په سر بار وی
واړه سهل دے که یار راسره یار وی

هزار باره به د یار تر ناسے زار کړم
که په قطع بے دا یو صورت هزار وی

هغه کس نهٔ دے په شمار د عاشقانو
چه د خپل تبر داغونه ئے په شمار وی

مشکل کار د عاشقئے چه خدائے پیدا کړو
کله بل په جهان هسے مشکل کار وی

څوځے اوښکے په مخ لارے روغے نهٔ کا
د هغو و معشوقو ته کله لار وی

تهٔ چه ګل زما د یار په جنس غواړے
کله دا رنګه ګلونه په ګلزار وی

نهٔ موندهٔ شی په بازار کښے نهٔ په ښهر
هغه رخت چه د خوبانو په بازار وی

زهٔ د یار په څیر مخ نهٔ وینم په سترګو
که په هره خوا خوبان هزار هزار وی

د عاشق نظر په ډیرو په لږ نهٔ وی
که دیدن د یار په لږ که په بسیار وی

شته هزار هزار خوبان ولے څرګند دے
که زما د یار په څیره د چا بار وی

مرګ له هیچا سره وار نهٔ کا رحمانه
یار به ځان تر بار ورومبے کا که ئے وار وی

*۵۳*۱۸۸*

له هغو سره په څه فکر د یار وی
چه یاران ئې په عمر اور هزار هزار وی

په آشنا پسې وېشلې هم هغه وی
چه له نورې آشنایئې ئې استغفار وی

صبوری او قراری دِ په ما زوم شي
که بې تا به بې یا صبر یا قرار وی

هر ژوندون د یار په وصل ښائسته وی
بې مینته که ژوندون وی څه بکار وی

که د یار له لاسه اور په ما بلیږی
هغه اور و عاشقانو ته ګلزار وی

په یارئې کښې آزار نشته خدائې دِ نهٔ کا
که ذره به زما زړهٔ له تا آزار وی

و هغو ته عاشق نهٔ وئیلې بویه
چه ئې فکر یا د سر یا د دستار وی

څانئې ئې اور شي چه زنار ئې شي په غاړه
ولې نه چه ستا د زلفو زنار دار وی

ستا د زلفو زنار دار که په اور سوزی
دغه اور به هم ربښتیا ستا د رخسار وی

هغه جونه به لیلیٰ غونډ رسوا شي
چه رحمٰن غونډې مجنون ئې په دیار وی

* ۵۴ * ۱۸۹ *

عاشقان دِ په اور سوی دی که نهٔ دی
ستا د عشق په اور الوی دی که نهٔ دی

زحمتونه د هجران واړه په عشق کښې
تا و ما وته ښوئلی دی که نهٔ دی

په دنیا کښې خو یو سر و مال ونیل شي
دواړه ما په تا بائللی دي که نهٔ دي

تل د ورو‌ځو په لینده د ښرو غشي
تا په ما باندې راکښلی دي که نهٔ دي

چه مدام ئې زما زړهٔ له غمه چوي
تورې زلفې دې پېچولی دي که نهٔ دي

راشه اوګوره احوال د عاشقانو
مړهٔ د عشق په تیغ کوتلی دي که نهٔ دي

ناصحان چه نصیحت و یار ته کاندي
چرې دوئ هم مئین شوي دي که نهٔ دي

ښائسته که په ښائست ملائیکه وي
په وکښو د زړونو روي دي که نهٔ دي

بلبلان پسې نارې وهي رحمانه
د بهار ګلونه شوي دي که نهٔ دي

* ۱۹۰ * ۷۵ *

د هغو چه خپله مهرو محبت وي
په عسرتې او په نیستئې کښې فراغت وي

عاشقي ده تر هغهٔ مقام په هورته
چه د چا مقام په رنج یا په راحت وي

څه د اور په لنبو سوئ څه د عشق
واړه عشق دے که هجران وي که وصلت وي

چه مطلب و مدعا د سړي خدائے شي
ناست ولاړ ئې همه واړه عبادت وي

که په‌دوه قدمه اوسړی هم حاجي شي
چا چه کړے دمګې په اوږے نیت وي

هغه څوك چه پیروي د اولیاء کا
دا ئې واړه په معنی کښې ولایت وي

که د زړو په تخت کښېنې غزا اوشوه
و فهیم وته کم فهمه بې عزت وي

خاوړے زر په سړي واړه برابر شي
هغه دم چه له جهانه په رحلت وي

د دانا او د نادان تر میان یو حد وي
هوښیاري ترحد په عورته حماقت وي

تجوز له خپله حده په کار نهٔ دے
د هر چا په خپله خونه کښې حرمت وي

نور عالم که د دنیا غمونه کاندی
د رحمٰن سره دِ غم د آخرت وی
* ۱۹۱ * ۵٦ *

د آشنا له لاسه ناست یم په زړهٔ سترے
په فلوس مے بکار نهٔ دے درست وګړے
چه په ژوند ئے طمعه پریکړے شی له ژونده
نور په څه باندے ویریږی سر پریکړے
که ژوندون د عاشقانو په وصال وی
زهٔ مهجور یم په دښه روایت مړے
خوږ ژوندون مے جدایئی هسے تریخ کړے
چه د غم له تلخئے دم نهٔ شم رانغړے
دا صورت په مثال خس محبت اور شو
ترو د اور په مخکښے څه کاندی خسنړے
لا علاج به لکه اوښ بار برداری کا
چه په بوزه ئے پیزوان شی د عشق بړے
له احواله ئے رو رو پوښتنی یارانو
بیلتانهٔ د رحمٰن وار دے خطا کړے
* ۱۹۲ * ۵۷ *

خدائے دِ وژغوره له هرے پریشانئی
اے زمـا د کـور و کلی ودانئی
عـاشقی چـه ما کوله نادانی وه
اوس خبر شومه له خپلے نادانئی
تر ورخ تیرے اوږهٔ بیرته نهٔ جار ووزی
څه په کار ده پوچ بے ځایه پښیمانئی

ودانی په یوهٔ دم کښې شي ویرانه
مرد هغه دے چه کړی ورانے ودانئي
لکه باد چه ځان وهي له کوه و دشته
زهٔ په تا پسے کوم سرګردانئي
دا خو زهٔ دِ ستا د غم سره لوښیوم
ځوک له دیوه سره کا پهلوانئي
چه په آب و په آتش په خاک و باد وی
څه امید دے په هغه زندګانئي
تهٔ چه دا رنګے اوږدے اوږدے وعدے کړے
کشکے راکړے و ما خط د امانئي
زهٔ او تهٔ که هغه وخت وے چا به نهٔ کړے
د مجنون او د لیلیٰ قصه خوانئي
زما ستا و ننـدارو ته به حیران وو
که ژوندی وے آدم خان او درخانئي
و هـر چا وته چـه وایم حیرانیږی
څـه به وایم د رحمٰن له حیرانئي
*۱۹۳*۵۸*

خدا یه مهٔ کړه نا امید هغه وګړے
چه امیـد ئے وی د ستا په کرم کړے
ستا له رحمه به زهٔ ولے نومیدی کړم
چه دِ ځان دے د رحیم په نام نومړے
دا نیمګړے سړے ننګ هم د خپل نام کا
نه خو خدائے وی چه په هیڅ نهٔ وی نیمګړے
هیڅ بنده دِ په بزرګئے کښې لیدهٔ نهٔ شي
څو تا خط د بزرګئے نهٔ دے ورکړے

دا همه واړه شومیت دے د شومانو
ګنړه نهٔ د چا په زړه ښه نهٔ دے سترے
چه بے تا ئے په زړهٔ بله سودا ګرځي
تر مقصوده به او نهٔ رسي وګړے
هر چه ستا په لور قدم د راستئے کیږدی
که ئے زبان وی زهٔ رحمٰن ئے بوره وړے

*۵۹*۱۹۳*

هسے ډوب یم ستا د غم په دریاب تللے
چه ماهي غونډے بے تیغه یم کوتللے
ما لیدلے چه لیندهٔ دِ وه راکښلے
تا د وروزو په لیندهٔ یمه راکښلے
دا خپل ځان بے تر هغه پورے نظر وو
څو مے تهٔ په نظر نهٔ وے کیوتلے
اوس مے ستا په مینه ځان و جهان هیر شو
د سیلاب په مخکښے لاړم لکه خلے
عاشقي به ئے د باد په مخ بنړه کا
که ئے ځان وی کوهِ قاف غونډے نیولے
چه د عشق له بحره روغ سلامت ووځي
زهٔ ئے نن ګنړم له موره زیږېدلے
هر چه واوري په بلا د تورو زلفو
هغه بیا تر موره نهٔ دے ورغلے
چه له غړونو پرېوتلي وی بیا پاسي
پاسیدے نهٔ شي د زړونو پرېوتلے
چه د اوږ لنبو وهلے وی بیا روغ شي
روغ به نهٔ شي د هجران لنبو وهلے

زهٔ رحمٰن ئے هردم وینم ستا په غم کښے
که خپل مرګ په سترګو نهٔ دے چا لیدلے

*۶۰ *۱۹۵*

خو زما په ورمیږهٔ ماتول شیر ئے
که په مرګ د رقیب هم هسے شمشیر ئے
مرګ خو وینے چه پخپله راپسے دے
څه محتاج زما و مرګ وته ډیر ډیر ئے
کبرو خیال خو لا•له څایه ستا عادت وو
او که نن زما له قصده په بل پیر ئے
دا بے شماره عاقلان به شی کم عقل
ته چه دا رنګے په زړهٔ وکښنهٔ دلیر ئے
ستا خویونه به په خپله څان څرګند کا
زهٔ به څه وایم چه تهٔ تر بلا تیر ئے
له حیرته دِ تعریف کولے نهٔ شم
چه په څه رنګ دِ ستایم د چا په څیر ئے
ما چه ستا د لبو خوند واخست محظوظ شوم
که سل څله په تارخهٔ وئیل ګنډیر ئے
د جهان ښکلی که واړه د رحمٰن شی
خدائے دِ نهٔ کا چه په ئے تهٔ له دِله هیر ئے

*۶۱ *۱۹۶*

زهٔ دا ستا له غمه ژارم واړه وینے
واړه وینے، واړه وینے، واړه وینے
خود مے وینے چه په تش کاتهٔ دِ مرمه
لا خنجر په کانړی مړے دل سنګینے

هر زمان ہے پہ حضور د سترکو وژنی
لا یقین دِ د زرۂ نهٔ شی بے یقینے
عالم ستا پہ مینه ژوی نهٔ پوهیږم
زۂ پہ څه سبب وژلے یم ستا مینے
ډیر عالم به نوری رنګ کا معلومیږی
تا چه هسے جامے واغوستے رنګینے
پټیږے نهٔ وی چه به بل خوا وته دروسی
هسے سکنړی پہ غمزه د عاشق سینے
که صورت ہے پرے بل پورے معلومیږی
زړۂ ہے ستا له غمه چاوډ دے نازنینے
هغه څوک دی چه تر تا به بهترین وی
اے تر وارو مهـرویانـو بهترینے
چه دِ زلفے د رحمٰن په زړۂ وریځ کړے
تر بنړو ئے څکه څاڅی اوښکے وینے
* ۶۲ * ۱۹۷ *

د وصال پہ هوا والوتے مارغهٔ شوے
د هجران په اور کښے درست صورت اوبهٔ شوے
نهٔ وزر کا له هوس، نهٔ مری له غمه
سرے سخت دے ګنړه یو اثر پرے اوشوے
زړۂ که چاوډے هم له دے غمه به چاوډ
چه د یار د بیلتانهٔ خواری په زړۂ شوے
د وټ و ناکړدو ته چه نظر کرم
د عاشق له آه روند په تور لیمه شوے
هیڅ پوره به دِ نیمګری نهٔ شی خدایه
که بیلتون د دوه یارانو ویله نهٔ شوے

چه پیلتون د دوه یارانو وبله کاندی
د هغو خلقو له مرګه واوریدهٔ شوے

خدائے رضا، راله چا هسے تعویذ اوکړے
چه لیږ زهٔ د هغه یار تر فهمه ښهٔ شوے

بو ځل یار په سترګو اولیدے چه دا دے
دغه پسه هر چه شولے بیا هالهٔ شوے

نوم ئے یو ځل زما واخستے په ژبه
نور مے نوم په دا جهان کښے پاتے نهٔ شوے

زهٔ رحمٰن په دا خبره حق حیران یم
نهٔ پوهیږم چه د یار له غمه څه شوے؟

* ۹۲ * ۱۹۸ *

که له تانه شرم نهٔ کیدے مهر ئے
مخ به پټ نه وو د حورے د پرئے

چه آفتاب دِ تر رخسار پورے خجل شو
له دے ویرے زیست په شپه کا قمرئے

ستا تر حسنه پورے حسن واړه هیڅ دے
نیست به څه له هستو کا برابرئے

بے د ستا د تورو سترګو جادوګرو
کوم آهو د بیابان زده وی دم ګړئے

ستاد عشق د تورے هسے رنګ ګذار دے
چه له مخه ئے حباب شی ککړئے

دلبری او دلجوئی لکه چه ستا زده
چا زده هسے دلبرئے او دلجوئیئے

حسن واړه د عاشق په عشق موقوف دے
معشوقه که فرښته وی که چوړئے

و عاشق ته د یار غم واړه ښادی ده
د رضا په ملک کښے نشته دلګیرئے

دا دستور دے چه له درده زویرګے خیژی
ګنړه څه وی د رحمٰن له شاعرئے

* ۹۳ * ۱۹۹ *

(د رحمان بابا آردو کلام)

به وصلِ تو مارا کجا هاتھ ہے  که وصل تو خیلے بڑی بات ہے
به کوئی تو گفتم که مسکن کنم  ولے کے مرا این دراجات ہے
خمِ زلف تو گوشهٔ ابروان  د لم را عجائب مقامات ہے
مکن پیش من وصفِ خورشید و ماه  که از حسنت این کم علامات ہے
همی دادی دشنام و گلی مرا  بسویم همین از تو سوغات ہے
نگاهت نه امروز خونم بریخت  که دایم ترا همچو عادات ہے

ز آغوش رحمٰن مرو با رقیب
که این سلفه بد خوئی و بدذات ہے

* ٦٥ * ٢٠٠ *

چه پخته شي آشنائي  تر میان ووځي جدائي
و طالب و ته وفا شي  د مطلوب بے وفائي
بادشاهي کاندي بدله  د دیدن پهٔ گدائي
خاني پلوري په اوربشو  میرزائي په میزرائي
نظر نهٔ کاندي هیچرے  په لویئي په بدائي
ورته کفر شرکندیري  خود بیني او خود رائي
خودرائي په عاشقئے کښے  له عاشقه نهٔ ښائي
معشوقے که بے وفا دي  عاشقان خو ئے ستائي
غوږ ئے کوبر سترگے رندے وي  د خپل یار په خطائي
که ئے کړي وي سل علمه  هم دیني هم دُنیائي
همه واړه فراموش کړه  چه پرے ورشي شیدائي
و مطلوب ته نهٔ رسیږي  په شیخئے په ملائي
آوازه ننګ و ناموس کا  په سر واخلي رسوائي
تر ناموسه ورته به شي  بے ننګي و بے نوائي

هره چاړ ئے په اخلاص وی — نهٔ په روئ و زبانی
قبلوی په دواړو سترګو — هر چه یار پرے فرمانی
نصیحت پرے اثر نهٔ کا — که څوك سل ځله وائی
فائده نهٔ لری په عشق کښے — د دانا و دانائی
مشکل کار دے عاشقی — آسان چرے دے بانی
دغه کار کولے نهٔ شی — هر کم فهم و کجائی
هر کم بخت ئے کله موسی — د دلبرو همستانی
څه په کسب موندهٔ نهٔ شی — دغه کار دے عطائی
چه د عشق په لومه کښیوزی — نور ئے نه وی رهائی
بے د یار له مخه نهٔ شی — د عاشق د لکشائی
د خپل یار په طلب ګرځی — غاړے غرونه پیمائی
له عالمه وی وتلے — لکه صید صحرائی
تل تر تله ئے وطن وی — ګوشه کنج و تنهائی
مدام سوے لوغړن وی — د خپل آه په ګرمائی
هر زمان ئے په لو نسی — د خپل یار تمنائی
نهٔ ئے ملک او نهٔ ئے مال وی — نهٔ ئے زهد و پارسائی
په دا هسے ګرانو چارو — معشوقه ئے آزمائی
په یوهٔ دیدن ترے یوسی — د درست عمر ګمائی
هم ہے هسے رنګے وژنی — یاره ستا بے وفائی
چه په زړهٔ کړم زړهٔ ہے وچوی — دغه ستا خود نمائی
هم خودی لری بے قیاسه — هم د حسن زیبائی
ضرور نهٔ لری بے نفع — ستا د مینے سودائی
ستا سودا ما لره سود دے — حق په وا یم خدائی
په هیڅ مخ کښے لیدهٔ نهٔ شی — ستا د حسن صفائی
نمر په څه له تا سیالی کا — په دا بے سر و پائی
ادراک نهٔ رسی د سرو — ستا د قد په رعنائی

لکه ستا چه قد بالا دے نشته هسے با لائی
که دا ستا وصال دریا وی زۀ ساهی یم دریائی
د مگسو زندگی ده په دوکان د حلوائی
زۀ طوطی شکر پرست یم دا ستا شوندے متائی
دا ګران په رحمٰن مکره
چه بے تا به ګو پائی

*۶۶*۲۰۱*

دا ژوندی چه معلومیږی واړه مړۀ دی
که څه وی هم هسے وایه چه څه نۀ دی
یا د باد په مخ کښیے خاورے دی دا تورے
یا د اور په مخ کښیے واړه اوچ وابۀ دی
د خپل عمر شپے او ورځے چه په زړۀ کړم
هسے دروسی چه د سیند ګویا اوبۀ دی
غافلان که وینی آوزی به ئے څه کړے
دا ئے خوب دے نۀ لیدۀ نۀ آورېدۀ دی
چه د خدائے له معرفته خبر نۀ وی
هغه واړه که بیدار دی هم اودۀ دی
د رحمٰن د زړۀ له حاله خدائے خبر دے
چه په زړۀ کښیے ئے د یار له غمه څه دی

*۶۷*۲۰۲*

هغه یار چه ښائسته دے تر آفتابه
مخ به ګله را څرګند کا له حجابه
بیلتانهٔ په زړهٔ زهیر کړم بے حسابه
یو سبب وکړے مسبب الاسبابه
چه زما ملاقات اوشی له احبابه

ملاقات د ښائستو مے نصیب کړے
د ښائست په ګلستان مے عندلیب کړے
عندلیب مے په ګلشن د خپل حبیب کړے
خدایه ما په دلبرانو کښے قریب کړے
ویے ژغورے د دے اهل له عتابه

هغه یار چه زهٔ ئے مینه په دیدار کړم
همیشه ئے و دیدن ته انتظار کړم
شپه او ورځ پسے ناوے وهم کوکار کړم
که په رویٔ ورته تمام جهان رونیدار کړم
سترګے نهٔ پورته کوی د ناز له خوابه

بیلتانهٔ ئے پټ پنهم په زړهٔ تاراج کړم
و دیدن ته ئے په هسے رنګ محتاج کړم
چه غرقاب ئے د غمونو په امواج کړم
هیڅ پایاب ئے موندهٔ نهٔ شی څه علاج کړم
د آشنا د مینے غم شو ناپایابه

ته چه کس ئے د جمله ؤ بے کسانو
هم کارساز ئے د جمله ؤ خام کارانو
هم په رویٔ او بزرګئے د بزرګانو
زهٔ وصال په دعا غوارم د خوبانو
ه لا به ګله دا دعا شی مستجابه

اسیر کړے دِ د زلفو په طناب یم
تکبیر کړے دِ د سترګو په قصاب یم
د ماهی په شان مدام په اضطراب یم
لکه زهٔ چه ستا له غمه په عذاب یم

خبر مهٔ شه هیڅ بنده له دے عذابه

کاش چه نهٔ وے په دنیا کښے پیدا شوے
او که وے هم په دا هسے شان خو مهٔ وے
لکه زهٔ یم د هجران په لنبو سوے
څو به ګرځم د هجران په اور الوے

چه سینه مے شوه په درست عمر کبابه

ستا په هجر مے خراب خاطر ناښاد شهٔ
زیست روزګار مے همیشه آه و فریاد شهٔ
تل خواهش مے د زړهٔ هسے رنګ برباد شهٔ
چه حباب غوندے بے بیخه بے بنیاد شهٔ

د ښادئ طمع به څه کړم له احبابه

پټ پټ ګرځم د ناصح له نصیحته
راته ګانډی نصیحت په څو صورته
چه توبه کړم د خوبانو له قربته
هیڅ جواب ئے په ما نهٔ شی له غیرته

درمانده ورته ولاړ یم لا جوابه

دا جواب څه هسے نهٔ دے چه په خولهٔ شی
د عشق راز څه هسے لهٔ دے چه وایهٔ شی
دا مشکل حکایتونه په ما نهٔ شی
د دے بحر بے پایان حساب به څه شی

چه ئے زهٔ و چا ته وایم له حسابه

چنا سوندلے د دے بحر پایان نهٔ دے
دغه راز و هر سړی ته عیان نهٔ دے
هیچا کړے د دے چارے بیان نهٔ دے
دغه واره عاشقی ده وحشت نهٔ دے
چه په خوله کښې دُر و لعل لري سیرابه

* ۲۰۳ * ۶۸ *

ستل جفا د حد په هورته ده صنمه
تل مے اوښکے موج وهی د زړهٔ له غمه
څو به پټه دا قصه اوسی پنهمه
هسے ډوب په فکر پروت یمه بے دمه
نهٔ پوهیږم چه په غرهٔ یم که په سمه
که خبر وے له دے هسے رنګ خوارئے
ما به نوم آخستے نهٔ وو د یارئے
تا د غم په دریاب ډوب یم تر مرئے
بے تا نهٔ لرم هیڅوک داد ګیرئے
مګر تهٔ په پخپله لاس راکړے همدمه
وے نور به آشنائی له هیچا نهٔ کړم
م په دا رنګ مے نیت وو یارے څه کړم
قسمت علاج په چا شی چه ئے زهٔ کړم
ه په سل رنګه تلاش و تدبیر وکړم
بخلاصے نهٔ سوسم له لوحه له قلمه

خوبرویان که بے وفا دی خو هم ورهٔ دی
عاشقان که وفادار دی خو هم پرهٔ دی
ستا له غمه هر چه دی زما په زړهٔ دی
اوس به حال و چا ته وایمه چه مرهٔ دی
غرض دا دے چه زهٔ کرم یم تهٔ نا کرمه

یو خو دا چه په صورت ئے پری رویه
هم په خوئ و په خصلت فرشته خویه
هم په قد و په قامت هر کوره لویه
بیا به نهٔ موسی څوک تا غوندے دلجویه
که ئے غوارے په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زهٔ په ځان کرم هسے چارے
چه دښمن ئے وبله نهٔ کا کلمذارے
تهٔ په څه سبب زما نه دل آزارے
دا زما گناه را وښیه دلدارے
چه توبه کرم نصوحا غوندے محکمه

لاس تر غاړه د رقیب سره خندا کړے
چه ما اووینے له قصده راته شا کړے
خدائے ئے وینی هغه چارے چه په ما کړے
تر ابده ورځے پورے به جفا کړے
تهٔ به کله وجار وزے له ستمه

تا چه هسے بے نیازی د ځان توبنه کره
په عاشق دِ د خندا زنکه متره کره
بیا دِ ورځ په غریبانو توره شپه کره
نور دا هسے د جفا خویونه مه کره
خلقه به دِ له جوره شی برهمه

ستا زما له مینې هر څوک خبردار دی
دا خبرې کوراکور په هر دیار دی
چه فلانا فلانا سړے سره دوستدار دی
اوس په بیرته جاروانه و ماته عار دی
چه رسوا شوم تر عرب و تر عجمه

هغه څوک چه په تا باندې مین وی
په وګړی به رسوا لکه ګوره کن وی
همیشه انګشت نما په مرد و زن وی
چه دا نخښې په کښې نه وی دروغژن وی
که په هره ګړئ خوری هزار قسمه

نښانه د عاشقانو اول دا ده
چه مدام ئې سری کار وی ا- فریاده
تل نامه د بدنامئ زتی پرے زیاده
نه ویریږی له پیغوره له اعداده
بے د یار د جدایئ له ماتمه

هر چه زړه ئې مبتلا شی په بتانو
زیست ئې نه شی یو ساعت بې مهرویانو
که څوک ورکړی بادشاهی د بادشاهانو
په نسبت د هغو سوئ سوختګانو
دا متاع ده تر یوه خسنړی کمه

که سلیمان (ع) غوندے مسند ئې په هوا وی
په سبب د عاشقئ به خاکې پا وی
همیشه به په فریاد و په غوغا وی
چه دا هسې نښانې په کښې پیدا وی
ترو هاله برے عاشقی ده مسلّمه

عاشقي د هيڅوک نه ګڼري آسانه
دا خبره ده له حد په هورته ګرانه
وصال نه دے چا موندلے بے هجرانه
ته له ځان سره اتکل وکړه رحمانه
په دنيا کښے ښادي چرے ده بے غمه

* ٦٩ * ۲۰۴ *

---